# نیکمرغه ښځه

## د ښځو احکام او معاصر مسائل




تألیف

حمدالله «شاکري»

# نیکمرغه ښځه

# د ښځو مختصر احکام او معاصر مسائل

لیکوال : حمدالله "شاکري"

# سریزه

إن الحمد لله، نحمده، ونستعينه، ونستغفره، ونعوذ بالله من شرور أنفسنا، ومن سيئات أعمالنا، من يهده الله فلا مضل له، ومن يُضلل فلا هادي له، وأشهد أن لا إله إلا الله وحده لا شريك له، وأشهد أن محمدًا عبده ورسوله... اما بعد :

د کورنۍ اصلاح د ټولنې اصلاح ده، د مور اصلاح د کورنۍ اصلاح ده، ځکه د انسان د تربیت لومړی مدرسه د مور غیږ ده کله چې دغه مدرسه اصلاح شوه نو فارغان به یې هم اصلاح وي مګر که دغه مدرسه فاسده شوه فارغان به یې هم فاسد وي .

ددې مدرسې اصلاح په علم سره کیږي تر څو صحي عقیده او د دین ضروري احکام زده کړي او د خپل اولاد مسئولیت درک کړي او د هغه صحي تربیت ته پاملرنه وکړي [فَاعْلَمْ أَنَّهُ لَا إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ][1]

کله چې مور په ضروري شرعې علم پوه، دینداره او تقوی داره وي نو پر اولاد باندې یې اثر پرېوځي ځکه چې کوچني اولادونه اکثراً د مور تر څارنې او مراقبت لاندې وي او د کوچني والی په سن کې دوماغ بالکل خالي وي عیقدتي، عبادتي او اخلاقي تربیت خاص اهمیت لري .

په دغه کتاب کې مو ډیر کوښښ کړی تر څو د خویندو ځنې مهم او ضروري احکام او معاصر مسائل بیان کړو او مطالب ډیر اوږده نه کړو .

الله تعالی د وکړي چې دغه وړه هڅه ماته د ښنې یوه ذریغه او مسلمانانو وروڼو او خویندو ته د دیني زده کړې یوه وړه توښه ورکړځي .

وآخِرُ دعوانا أنِ الحمدُ لله ربِّ العالمين، وصلَّى الله على نبيِّنا محمَّدٍ وعلى آله وصحبِه وإخوانِه إلى يوم الدِّين، وسلَّم تسليمًا.

حمدالله "شاکري"

---

[1]- سوره محمد :۱۹ .

# لومړی فصل

## په اسلام کې د ښځې مقام او منزلت

اسلام ښځې ته داسې عزت، مقام او منزلت ورکړی چې پر بل هیڅ دین کې نشته.

کله چې خور او لور وي نو د هغې سره يې د ښه سلوک کولو زيات ټينګار کړی او دغه ښه سلوک او نيکه تربيه د دوزخ د اور څخه د نجات يوه وسيله ده.

رسول الله صلی الله عليه وسلم فرمايلي: :«من رُزق بناتٍ أو أَخَواتٍ فأحسن إليهِنَّ كُنَّ له سِتراً من النار»[1] .

ژباړه: {چا ته چې الله تعالی دوې لورګانې او يا دوې خويندې ورکړې وي او له هغوی سره نيک چلند او د هغوی ديني ترتيبت وکړي هغه لره به د دوزخ له اور څخه پرده وګرځي}.

کله چې واده شي نو د سړي سره د ژوند شريکه شي، اسلام دغه مهال بيا هم له ښځو سره د ښه سلوک کولو ډير زيات ټينګار کړی دی، الله پاک حکم کړی دی: [وَعَاشِرُوهُنَّ بِالْمَعْرُوفِ]

ژباړه: {او له هغې سره په ښه طريقه ژوند تير کړئ}.

او رسول الله صلی الله عليه وسلم فرمايلي:«د ايمان په اعتبار سره ستاسو کښې کامل ايمان واله هغه څوک دی چه د هغه اخلاق او خوی ښه وي او تاسی کې بهترين اوغوره هغه دی چه د خپلی ښځی سره يی سلوک ښه وي»[2] .

او چې کله مور شي نو مرتبه يې نوره هم لوړه او اسلام د هغې سره د ډير ښه سلوک کولو حکم کړی دی: [وَقَضَى رَبُّكَ أَلَّا تَعْبُدُوا إِلَّا إِيَّاهُ وَبِالْوَالِدَيْنِ إِحْسَانًا][3].

ژباړه: ستا رب حکم کړی دی چې له هغه پرته (د بل هيچا او هيڅ شي ) عبادت مه کوئ او له مور او پلار سره ښه وکړئ.

او له پلار څخه يې د مور حق څو څنده لوړ کړی دی .

---

[1]- حديث متفق عليه .

[2]- رواه الترمذي: ١١٦٢، مشكاة المصابيح: ٣٢٠٠.

[3]- سوره الاسراء :٢٣.

**په اسلام کې د ښځې د عزت او اکرام ځنې صورتونه :**

۱- د ښځې نفقه په پلار، خاوند او نورو خپلوانو باندې فرض ده، او دا د ښځې په حق کې يو لوی احسان دی ځکه د نفقې پيدا کول اکثراً د کور څخه د باندې او ځنې وخت سخت او وزمين کارونه او ځنې وخت مسافرت ته هم ضرورت پېښيږي چې دا ډول کارونه د ښځې د فطري جوړښت له توان څخه لوړ وي .

۲- د نفقې برابرولو سربيره يې د ښځو لپاره مهر واجب ګرځولی دی او مهر يوازې د ښځې حق دی په هغه کې د هغې پلار، ورور او خاوند د تصرف کولو حق نه لري .

۳- د نفقې او مهر سربيره يې ښځې ته د پلار، خاوند، زوی او نورو خپلوانو په ميراث کې برخه ټاکلې ده .

۴- ښځه پخپل مال کې د تصرف کولو پوره حق لري لکه: بيع، اجاره او نور معاملات.

۵- د فاسقانو او په زړه ناروغه کسانو د اذيت او ضرر څخه د امن او د عفت او حيثيت ساتنې لپاره يې حجاب ورباندې فرض کړی دی چې د ښځې د عزت او شرافت شعار د فاسقانو څخه د امن کلک ديوال دی.

۶- کچيرې د ښځې پر وړاندې ظلم او زياتی وي، د اسلامي پولو د ورانيدو خطر وي نو اسلامي شريعت د اسلامي ضوابطو په رڼا کې د خلعې او تفريق د اباحت حکم کړی دی.

۷- اسلام د ټولو مظلومانو د دفاع او مدد کولو دين دی، لکه: ښځه په خاصه توګه کونډه ښځه، يتيم، فقير، مسکين، مظلوم، ناروغ او غم ځپلی د ټولو سره يې د مدد او مرستې او ښه سلوک ټينګار کړی، دلته يوازې په دوو حديثونو باندې اکتفاء کوو:

رسول الله صلی الله عليه وسلم فرمايلي دي : « السَّاعِي علَى الأَرْمَلَةِ وَالمِسْكِينِ كَالمُجاهِدِ في سبيلِ اللَّه » وأَحْسُبهُ قال: « وَكَالْقائِمِ الَّذي لا يَفْتُر، وَكَالصَّائِمِ لا يُفْطِر» [1] .

ژباړه : {د ګونډې او مسکين د ژوند د احتياجاتو په رفع کولو کې کوښښ کوونکی داسې دی لکه د الله د لارې مجاهد او يا داسې دی لکه : پرلپسې نفلي لمونځ کوونکی او نفلي روژه نيوونکی} .

[1]- رواه البخاري و مسلم.

د ابی هریره رضی الله عنه وایي چې نبی صلی الله علیه وسلم فرمایلی دي :((اللَّهُمَّ! إِنِّي أُحَرِّجُ حَقَّ الضَّعِيفَيْنِ: الْيَتِيمِ وَالْمَرْأَةِ))[1].

ژباړه: ای الله زه د دوو کمزورو یتیم او ښځې د حق تلفی نه ویریږم (ځکه چه ډیر خلک د یتیمانو او ښځو د حقونو خیال نه ساتي) .

## د مسلمانې ښځې پروړاندې د اسلام دوښمنو دسېسې:

نن ورځ د اسلام دښمنان بلکې د انسانیت دښمنان کفار، منافقان او تور زړي غواړي د اسلام د مبین دین هغه عزت، کرامت، مصؤنیت کوم چې مسلمانو ښځو ته یې ورکړی له مینځه یوسي.
ځکه د اسلام دښمنان کفار او منافقین غواړي چې ښځه فقط د دوي لپاره د ورانی یوه لاسي وسیله وي ورځخه داسې یو دام جوړ کړي چې د هغې په وسیله ضعیف الایمانه او شهوت پرسته خلک دوکه او ښکار کړي.
همدارنګه کافران، منافقان او ځنې ضعیف الایمانه مسلمانان غواړي چې ښځې دې په ټولنیز ډګر کې له نارینوو سره ګډ او مخلوط ژوند وکړي هغوی دې نیمه بربنډ او شهوت پارونکي جامې اغوندې تر څو د هغوي په وسیله خپلې نا پاکې او شومې موخې ترلاسه کړي.
په همدې وجه هغوی غواړي چې ښځې له کورونو د باندې ووځي او په ټولنېزو فعالیتونو کې له نارینه وو سره اوږه پر اوږه کار وکړي، یا په حیث د پایواز په روغتونونو کې د نارینه وو پایوازي وکړي، یا په الوتکو کې د خدمتګار دنده تر سره کړي، یا په مکتبونو او ګډو صنفونو کې د استاد او ښوونکي په حیث په مختلط ډول هلکانو او جینکو ته په درس ورکولو باندې مصروفه ووسېږي، یا په فلمونو کې د لوبغاړې په حیث ولوبیږي، یا د سندرغاړې په شان ترانې او سندرې ووایي، یا په بې حجابه او بې پردې شکل په رسنیو او د عامه ارتباطاتو په وسایلو کې په فتنه خپرونکي څېره او غږ باندې خلک د فتنو او فحشاء لور ته وهڅوي، او همدا ډول په ورځپاڼو او مجلو کې د ښایسته نجونو نیمه بربنډ عکسونه خپاره کړي تر څو د خپلو بې ارزښته او بې پنده مجلو مینه وال زیات کړي او د مجلو اخیستونکي زیات شي.

---

[1]- رواه ابن الماجه:۳۶۷۸.

همدارنګه ډیري کارخانې،تجاران او د صنعت خاوندان له دغه شان عکسونو څخه د خپلو توکو د خرڅلاو او شهرت لپاره استفاده کوي، دغه عکسونو د خپلو تولېداتو پر مخ چاپوي،نو له همدې امله د دغو غلطو اقداماتو په نتیجه کې ښځې له خپلو اصلي دندو څخه فاصله نیولې ده، د هغوي دنده چې په کور کې دننه ده هغه ځای خالي دی او خاوندان مجبوره دي چې د هغه خالیګا د ډکولو او د اولادونو د لویولو لپاره د پردیو خدمتګارو ښځو څخه استفاده وکړي د خپل کور د کارونو د تر سره کولو لپاره هغوی په مزدورۍ سره ونیسي چې په نتیجه کې بې شماره فتني او فسادونه را منځ ته کیږي.

## په دیموکراسۍ کې د ښځې حیثیت

**راځئ چې له غربي ښځو یې واورو!**

(جوانا فرانسیس) امریکایي ښځه ده چې د (Feminenza)بنسټ په نوم د ښځو د حقونو مشره ده ، د غرب د ماحول او په غربي ډیموکراسۍ کې د ښځو د احوالو او حقوقو څخه پرده پورته کوي او مسلمانانو ښځو ته داسې وایي:

تر اوسه پورې د یوې طبعي ښځې ژوند لرئ، مونږ امریکایي ښځو هم تر (۱۹۶۰) پورې تقریباً همداسې ژوند لرلو چې وروسته د شریک دوښمن لخوا په چل او فریب سره په اخلاقي فساد سره بمبارت شولو.

نن چې پر تاسې باندې د امریکایي الوتکو کوم بمبارت جریان لري د هغه پر ځای یې مونږ د جنسي فساد په بمونو بمبارت کړي یو، هغوی چې کله د دولتونو د ظاهري بمبارت څخه فارغ شي نو زمونږ په شان به مو په جنسي فساد سره بمبارت کړي.

مونږ د هغوی د دغه ډول شیطاني نفوذ څخه زیات تلفات وګالل خو تاسې باید ورڅخه ځان وساتئ.

غوږ شئ ! د هغوی د مساواتو خبرې تش دروغ دي، هغوی کوښښ کوي مونږ امریکایي میرمنې په شهوت بارونکو فلمونو، سریالونو او بې حجابه جامو په دروغو خوشحاله وساتي او له

خپل مسئولیت او کورني ژوند څخه مو لرې کړي ، همداسې هغوی غواړي ستاسې کورنی ژوند برباد کړي.
د ښځې جسماني جاذبه باید د بې لیاقته څخه پټه وساتل شي او دا د هغه چا لپاره هدیه کړ شي چې پر تاسې باندې غیرت کوي، ستاسې میړونه نارینه دي، غیرت لري، شجاعت لري، پاکي او عفت خوښوي.
زمونږ نارینه نور پاکدامني او عفت نه خوښوي هغوی د ملغلرې پر ځای د زرق او برق واله مصنوعي ډبرې خوښوي چې سوء استفاده ور څخه وکړي او بیا یې وغورځوي.
زه متوجه شوې یمه چې ځینې مسلمانې ښځې بې حجابي خوښوي، د خپلو حدودو څخه تیرى کوي د غرب د ښځو تقلید کوي او غواړي چې د غرب د ښځو پشان شي.
تاسې ولې د هغو ښځو تقلید وکړئ چې د خپل تللي عزت او عفت باندې پښېمانه دي چې هیڅ جبران نلري ؟
تاسې د بې عیبه الماس په شان یاست هغوی مه پرېږدئ چې بې قیمه ډبرې مو وګرځوي.
تاسې چې د غرب په مجلو او تلویزونو کې څه وینئ ، درواغ او شیطاني دام دی.
تاسې لپاره د امن یوازنی ځای د خپل خاوند پناګاه ده . پر ما اعتماد وکړئ ! مونږ اکثره خوشحاله نه یو زمونږ څخه په میلیونو د خپګان ګولی خوري.
زمونږ غربي ښځو مغزونه مینځل شوي دي او په حقیقت کې پر مونږ ظلم شوی، د موډ او فیشن غلامانې یو چې زمونږ پوست وباسي، (عزت او عفت مو لیلام شوی) د نارینه د محبت ګدایي ګرې او سوالګرې یو.

**فرانسوی لیکواله (فرانسوزساجان) وایي:**

ای د ختیځ ښځې! هغه څوک چې ستا په نوم چیغې او نارې وهې او تا د حجاب د کوزولو او سرې سره د مساوات ډګر ته رابلي دوی په تا پورې خندا او ستا توهین کوي او تر تا د مخه یې په مونږ پورې خندا او زمونږ توهین کړی.
دا خلک چې د ښځې د ازادۍ ډنډوره غږوي.

دا تش په نامه ازادي ده، اما په معنوي لحاظ دا په رزق پسې د ښځې شړل دي.

یا په عبثیاتو او شهواتو کې د ښځې بې واکو خوشي کول دي.

یا له دین او اخلاقي نیکمرغیو څخه د ښځې راویستل دي.

په دغه تمدن کې د ښځې ازادئ ته په لومړي ځل هر ډول نوم او عنوان ورکول کیداشي مګر په پای کې یواځې د ښځې په فساد او له مینځه تلو منتج کیږي.

هغه ښځه ستر شان لري چې له انسان څخه په انسانیت کې ستر انسان جوړ کړي، نه داچې په حیوانیت کې یې ستر کړي.

کورنئ د ښځو د سترګو په تور والې او دغومبرو او شنډو په سوروالي نه جوړیږي بلکه د ښځو په سپڅلو اخلاقو جوړیږي.

ای د ختیځ ښځې! له اروپایې تمدن څخه ډډه وکړه چې هغه به ستا نیکمرغه ښځې توب هغو جامو او پوښاک ته ورته کړي، چې هم تنګولې او هم ارتولې شي، د لویدیځ له دغه اجتماعي ښځې توب څخه ځان وژغوره چې په انتهایي ظرافت او دقت سره به ستا ښځې توب پای ته رسوي.

ای دختیځ ښځې!

دلویدیځ له هغه تمدن څخه چې د ښځې توب ـ اوزوجیت مفهوم له مینځه وړي ځان وساته، هغه چې هدف یې فقط او فقط د ښځې توهین او سپکاوی دی.

## دوهم فصل

## د حيض او نفاس مختصر احكام

**د حيض تعريف :** حيض په لغت کې بهېدلو يا جريان ته وايي او په شرعي اصطلاح کې حيض عبارت له هغه وينې څخه دی چې د ښځې د رحم د داخل نه په ټاکلي وخت کې پرته له هيڅ ډول ناروغۍ او تکليف رسېدلو څخه په طبعي ډول بهېږي.

دغه وينه الله پاک د بني آدم په ذات او صفت کې د ښځينه وو لپاره ايښي ده. د غه وينه الله پاک د ښځې په رحم کې پيدا کړي ده تر څو د حاملګۍ په دوره کې د بچې لپاره غذا وي او وروسته د نوي ماشوم له زيږيدنې نه په شيدو باندې بدلېږي، نو کله چې ښځه نه حامله وي او نه شيدې ورکونکې نو دغه وينه پرته له مصرفه پاتې کيږي نو په همدې علت سره په ټاکلو وختونو کې له بدن څخه خارجېږي چې حيض او يا مياشتنی عادت بلل کيږي .

**د حيض عمر:** هغه عمر دی چې ښځې ته په هغه کې مياشتنۍ عادت پيدا کيږي چې له بلوغ څخه شروع تر پنځوس کلنۍ پورې دوام کوي .

**د حيض موده :** د حيض موده کمه درې ورځې او زياته لس ورځې که له درېو ورځو کم او له لسو ورځو زياته شوه نو هغه استخاضه (د حيض پشان مرض دی چې حکم يې داسې دی لکه : د وينې، باد او ميتيارو جاريوالی، يعنې اودس په اوداسه به کوي او لمونځ به ادا کوي) .

### نفاس ( د ولادت دوره )

**د نفاس تعريف :** نفاس عبارت له هغه وينې څخه دی چې له رحم څخه د بچي د زږېدلو يا تولد وروسته خارېجيږي، دغه وينه په اصل کې هغه وينه ده چې د حمل نيولو په وخت کې د ښځې په رِحم کې پاتې شوي ده ،کله چې ښځه زېږون وکړي دغه پاتې شوې وينه يې په تدريج سره له رِحم څخه بهيږي. همدا شان هغه وينه چې مخکې له زيږون او د زيږون د نښانو په شروع کېدو سره له ښځې څخه خاريجيږي نو همدغه د نفاس او يا د ولادت د وينې په نامه باندې ياديږي .

فقهاوو ددې وخت مخکې له ولادت څخه دوې او يا دري ورځې مقيد کړی دی غالباً د ولادت د درد په شروع سره شروع کيږي .

**د نفاس موده :** د فقهاؤ په اتفاق د نفاس زياته موده څلويښت ورځې ده او د کمې مودې حد يې معلوم نه دی د ښځې په عادت پورې اړه لري .

**مسئله:** که په حيض او يا نفاس کې د ښځې عادت ګډوډ شي نو د ګډوډی او بې نظمی ټولې ورځې حيض يا نفاس حسابيږي، داسې چې دوې ورځې وينه راځي بيا دوې يا درې ورځې پاکه وي او بيا وينه راشي نو دا ټولې ورځې حيض او يا نفاس دی.[1]

**مسئله :** کچيرې حيض له دريو ورځو کم او له لسو ورځو زيات شي او يا نفاس له ۴۰ ورځو زيات شي استحاضه بلل کيږي، استحاضه د مياشتني عادت او يا زيږنتون د وينو راتللو په شان ناروغي ده چې د معذور حکم لري د هر وخت د لمانځه لپاره به جلا اودس کوي، لمونځ به ادا کوي او روژه به نيسي او کورواله کول جايز دي.

## د حيض او نفاس احکام

### د حائضې او نفاسې احکام :

۱ - کورواله يا جماع کول : د حيض او نفاس په دوران کې ښځې سره کورواله يا جماع کول حرام دي.

الله پاک فرمايي : [وَيَسْأَلُونَكَ عَنِ الْمَحِيضِ قُلْ هُوَ أَذًى فَاعْتَزِلُواْ النِّسَآءَ فِي الْمَحِيضِ وَلاَ تَقْرَبُوهُنَّ حَتَّىَ يَطْهُرْنَ فَإِذَا تَطَهَّرْنَ فَأْتُوهُنَّ][2] .

ژباړه: {پوښتنه کوی له تا څخه (ای محمده صلی الله عليه وسلم! ) دحيض دحکم نه، ووايه دوی ته چې دا يوه ګندګی ده، په حيض کې له ښځو لرې اوسئ ترڅو چې پاکې نشي مه ورنږدې کيږئ ، کله چه ښی پاکې شی بيا ورسره يوځای شئ}.

نور نو يوځای ورسره آرام کول، ډوډی خوړل او نور ټول رواه دي، داسې نه لکه د جاهليت په دوران چې له ښځې څخه به د حيض او ولادت په دوران کې کرکه کيدله.

بلکي هغې ته به د اکرام او عزت په سترګه کتل کيږي ځکه چې د يوه بشر د زږيدو د پاره يې مرګونې قربانی ورکړی دي .

---

[1] - شرح البدايه:۶۲/۱ ،هنديه:۲۴/۱.

[2] - سوره البقره :۲۲۲.

۲- : حائضه او نفاسه ښځه باید د میاشتني عادت او زیږتون په دوره کې لمونځ او روژه ترک کړي . د دغو عبادتونو تر سره کول ورته حرام دي ځکه رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایلي دي «ألیس إذا حاضت المرأة لم تصل ولم تصم »[۱] .

یعنې :د حیض په موده کې د لمونځ او روژې ادا کول نشته .

د لمانځه قضایي نشته او یوازې به د روژې قضایي ادا کوي.

۳ . د حایضي او نفاسې ښځې لپاره په قرآنکریم باندي بغیر له پردې څخه لاس ایښودل، د قرآنکریم تلاوت کول، جومات ته تلل او د حیض په موده کې د کعبې د طواف کول جایز نه دي[۲].

۴- د حیض او نفاس له پاکیدو وروسته د غسل کول وربانديې واجب دي.

**په حیض او نفاس کې ځنې خپرې شوې خطاوې :**

۱- اسلامي شریعت د حیض کمه موده درې ورځې او زیاته موده لس ورځې ټاکلې ده، چې دا موده د هرې ښځې په عادت پورې اړه لري ځنې په دریو ورځو، ځنې پنځو ورځو او ځنې په اوو او یا لسو ورځو کې پاکیږي نو کله چې پاک شي غسل به ادا کړي او لمونځ به پیل کړي مګر ځنې خویندې مخکې پاکې شوې وي خو دوی د د لسو ورځو د پوره کیدو انتظار کوي همداسې په نفاس کې ځنې خویندې په ۲۵ ورځو ځنې په ۳۰ ورځو کې پاکیږي خو دوی د ۴۰ ورځو د پوره کیدو انتظار کوي .

۲- ځنې خویندې داسې ګمان کوي چې د حیض او نفاس په دوره کې به هیڅ قسم عبادت نه تر سره کیږي حال دا چې د حیض او نفاس په دوره کې ذکر، تسبیح، تهلیل، دورد شریف، وعظ او بیان او حتی قرآنکریم ته غوږ نیول جایز دي ځکه چې په شریعت کې یې په اړه منع نه ده راغلې[۳] .

---

[۱]- حدیث متفق علیه .

[۲]- شرح البدایه ۱/ ۶۸ .

[۳]- و لا بس لحائض و الجنب بقراءة و ادعیه ..و ذکر الله تعالی و تسبح (تنویر الابصار مع الدرمختار ۲۹۳/۱. ( و فی البحر رخص المس بالید الکتب الشرعیة (البحر الرائق ۱/ ۲۱۲ ) .

۳- ځنې خویندې د حیض او نفاس په دوره کې د ځان مینځل ښه نه ګني، حال دا چې په اسلامي شریعت کې منع ورڅخه نه ده شوې او اسلام هر وخت نظافت ته د خیال کولو حکم کړی دی، ښځه کولای شي خپل سر، بدن وویځې، نوکان او نور لرې کړي مګر دا چې د کوم مرض له امله غسل کول ورته ضرر وي هغه نو بیا یو ضرورت دی[۱].

۴- د حیض او نفاس د وینو د ټوټو مینځل ضرور نه دي :

دې ته ورته پوښتنه له الاسلام سوال جواب څخه هم شوی ده چې په ځواب کې لیکي:

د هیڅ معتبر اهل علم څخه دا نه دي نقل شوي چې د ښځې د پاره دا ضرور وي چې د حیض د وینو ټوټه دې ومینځې، ددې وینو محترم ګڼل او د هغه بې ځایه نه غورځول په اسلام کوم اصل نه لري.

د صحابه کرامو مبارکو بیبیانو به چې د حیض د وینو ټوټه مینځله هغه یې په دې خاطر مینځله چې بل ځل یې استعمال کړي ځکه چې بله ټوټه به نه وه.

خو نن چې څوک دغه کار کوي د بې علمي له وجې یې کوي چې داسې کول کوم اصل نه لري.

اوس مهال اکثراً یو ځل مصرف پمپر او کوتکس اچول کیږي چې د هغه مینځلو ته څه ضرورت دی ؟ بلکې یو خرافاتي فکر او کار دی.

۵- ځنې کسان له حایضې او نفاسې ښځې څخه ځان لرې ساتي د هغې سره ناسته ولاړه نه کوي او دا عمل د جاهلیت د زمانې میراث دی په اسلام کې هیڅ اصل نلري. یوازې جماع کول حرام دی نور ناسته ولاړه، خوراک او یو ځای چملاست ټول جایز دي، د حیض دوره د حمل د پاره د رحم تیاری او د نفاس دوره د یوه بشر د پیدایښت دوره ده چې ښځې د الله پاک د یوه بنده د پیدایښت د پاره مرګوني قربانۍ ورکړی وي .

---

[۱]- جاء في الفتاوى الاسلام ويب:
فلا صحة أبدا لمثل هذه المعلومة، بل على العكس فإن النظافة ضرورية في فترتي النفاس والحيض نتيجة زيادة إفرزات الجسم والعرق، والتي تزداد في هاتين المرحلتين.

## دریم فصل

## اسلامي حجاب

اسلامي حجاب پر مسلمانه ښځه باندې د الله تعالی له طرفه فرض کړ شوی دی، چې لوی عبادت دی، اسلامي حجاب د الله تعالی او د هغه د پیغمبر صلی الله علیه وسلم د حکم پر ځای کول دي،

او هر چا چې د الله تعالی او د هغه د پیغمبر حکم پر ځای کړ نو هغه لره په دنیا او آخرت کې نیکمرغي او لویه کامیابي ده .

الله پاک فرمايي: [وَمَن يُطِعِ اللَّهَ وَرَسُولَهُ وَيَخْشَ اللَّهَ وَيَتَّقْهِ فَأُوْلَئِكَ هُمُ الْفَائِزُونَ][1] .

ژباړه: او هر څوك چې د الله او د هغه د رسول اطاعت وکړي او له الله نه ووېرېږي او د هغه تقویٰ اختیار کړي، نو همدغه خلق بری موندونکي دي.

او فرمايي: [الَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ طُوبَى لَهُمْ وَحُسْنُ مَآبٍ][2] .

ژباړه: {هغه کسان چې ایمان یې راوړی دی او نېك عملونه یې کړي دي، د دوی لپاره ښه حال دی (د دوی لپاره په دنیا کې پاک او د عزت ژوند دی) او ښه استوګنځای دی (په آخرت کې د دوی لپاره جنت دی)}.

خو دې ته مو باید پام وي چې د هر عبادت د قبول لپاره دوه شرطونه دي، اخلاص لله او اتباع رسول الله ....

اخلاص لله،یعنې د حجاب په اغوستلو کې به یې نیت د اسلامي شریعت د حکم پر ځای کول او د الله پاک د رضا حاصول وي.

اتباع رسول الله، یعنی دا چې حجاب به د اسلامي شریعت موافق وي.

او د حجاب حکمت دا دی چې حجاب د مسلمانې ښځې د ایمانداری نښه او شعار دی او د حیا، عزت،اکرام او پاکدامنۍ یو کلک دیوال دی چې مسلمانه ښځه د فاسقانو او په زړه ناروغ خلکو له اذیت او ضرر څخه په امن وي.

---

[1]- سوره النور :۵۲ .
[2]- سوره الرعد:۲۹ .

### ۱- د ټول بدن پټولو حجاب :

الله سبحانه وتعالی فرمایي:[يَا أَيُّهَا النَّبِيُّ قُل لِّأَزْوَاجِكَ وَبَنَاتِكَ وَنِسَاءِ الْمُؤْمِنِينَ يُدْنِينَ عَلَيْهِنَّ مِن جَلَابِيبِهِنَّ ۚ ذَٰلِكَ أَدْنَىٰ أَن يُعْرَفْنَ فَلَا يُؤْذَيْنَ ۗ وَكَانَ اللَّهُ غَفُورًا رَّحِيمًا][1] .

ژباړه: {ای پیغمبره! ووایه ته خپلو ښځو، لوڼو، او د مؤمنانو ښځو ته چې خپل پړونې یا لوی څادرونه پر ځانو خواره کړي دا ډیره غوره کړنلاره ده تر څو و پیژندل شي نو نه به ربړول کیږي (د بدکاره او فاسقو خلکو له ضرر او اذیت رسولو به په امن وي) او الله ښه بخښونکی مهربان دی}.

تفسیر ابن کثیر د دغه آیت شریف په تفسیر کې د رئیس المفسرین ابن عباس رضی الله عنه قول نقلوي لیکي:

عن ابن عباس: أمر الله نساء المؤمنين إذا خرجن من بيوتهن في حاجة أن يغطين وجوههن من فوق رؤوسهن بالجلابيب، ويبدين عينًا واحدة.

یعني : الله تعالی مؤمنو ښځو ته دا حکم وکړ چې: کله د ضرورت په وخت کې د کور څخه د باندې وځئ نو خپل مخ د پاسه د سر په ټکري پټ کړئ او فقط یو سترګه ښکاره کړئ.

او د مخ پټول په حجاب کې شامل دي.

عایشه رضی الله عنها وایي: « كَانَ الرُّكْبَانُ يَمُرُّونَ بِنَا وَنَحْنُ مَعَ رَسُولِ اللَّهِ صلى الله عليه وسلم مُحْرِمَاتٌ فَإِذَا حَاذَوْا بِنَا سَدَلَتْ إِحْدَانَا جِلْبَابَهَا مِنْ رَأْسِهَا إِلَى وَجْهِهَا فَإِذَا جَاوَزُونَا كَشَفْنَاهُ »[2].

ژباړه: مونږ په سورلیو د رسول الله صلی الله علیه وسلم سره د حج د سفر لپاره روان وو کله به چې سړي زمونږ له خوا څخه تیریدل مونږ به مخ پټولو او کله به چې هغوی له مونږ څخه لرې شول نو مونږ به مخ لوڅولو.

د ابوبکر صدیق رضی الله عنه لور اسماء رضی الله عنها وایي: « كُنَّا نُغَطِّيَ وُجُوهَنَا مِنَ الرِّجَالِ ...»[3]

---

[1]- سوره الاحزاب:۵۹.

[2]- رواه ابوداود: ۱۸۳۳، ابن الماجه: ۲۹۳۵، صحیحه ابن خزیمة: ۴/۲۰۳.

[3]- رواه ابن خزیمة: ۴/۲۰۳ و حاکم: ۱/۶۲۴ و صحیحه ووافقه الذهبي و صححه الالباني.

ژباړه: مونږ به له (بیګانه) خلکو ځخه مخ پټولو.

رسول اکرم صلی الله علیه وسلم ښځو ته حکم کوي چه په طواف کې مخ مه پټوي او دستان له لاسونو لرې کړئ حدیث شریف داسې دی: « لا تَنْتقِبِ المرأةُ المحرِمَةُ، ولا تَلبَسِ القُفَّازَيِنِ »[١].

نو که د مخ پټول نه وای ددي حکم وضاحت ته څه ضرورت ؤ؟

نو ثابته شوه چې د مخ پټول په حجاب کې شامل دي ځکه چې د مخ لوځول د بیګانه خلکو په مخ کې د فتنې سبب جوړیږي د ویښتانو په لوځولو کې دومره فتنه نشته لکه د مخ په لوځولو کې ځکه چې د ښایست اصلي ځای مخ دی .

**٢- د نظر حجاب (د نامحرمو څخه د سترګو حجاب):**

سړي به له بیګانه ښځو خپل نظر ساتي او ښځې به له بیګانه سړیو خپل نظر ساتي، لقوله سبحانه وتعالی:[وَقُل لِّلْمُؤْمِنَاتِ يَغْضُضْنَ مِنْ أَبْصَارِهِنَّ][٢].

ژباړه: او مؤمنانو ښځو ته ووایه چې: خپلې سترګې ټیټې (د نا محرمو څخه خپل نظر وساتي).

او په دې اړه د ام سلمه رضی الله عنها مشهور روایت دی چې هغه فرمایي:

زه او میمونه رضی الله عنها د رسول الله صلی الله علیه وسلم سره وو، چې په دې حال کې ابن ام مکتوم رضی الله عنه راغی دغه وخت د حجاب حکم نازل شوی وو. رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل: « احْتَجِبَا مِنْهُ » «له هغه څخه ستر وکړئ »، ومو ویل: ای رسول الله:آیا هغه ړوند سړی نه دی چې مونږ نه ویني او نه مو هم پیژني؟ پیغمبرصَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَآلِهِ وَسَلَّمَ وفرمایل:« أفَعَمْيَاوَانِ أنتُما؟ أَلَسْتُمَا تُبْصِرَانِهِ؟ »[٣] آیا تاسې دواړه هم ړندې یاست؟آیا تاسې هغه نه وینئ؟.

**٣- د پښو حجاب:**

الله سبحانه وتعالی فرمایي: [وَلاَ يَضْرِبْنَ بِأَرْجُلِهِنَّ لِيُعْلَمَ مَا يُخْفِينَ مِن زِينَتِهِنَّ][٤].

ژباړه: او پښې دې په زوره نه ږدي تر څو یې پټ کړی ښایست ښکاره شي .

---

[١]- رواه البخاري.
[٢]- سوره النور :٣١.
[٣]- أحمد: (٢٩٦/٦)، و أبو داود (٤١١٢)، و الترمذي (٢٧٧٨)، و النسائی فی «الکبری»(٩٢٤١)، و ابن حبان في «صحيحه»(٥٥٧٥).
[٤]- سوره النور:٣١ .

**۴- له نامحرم سره د ضرورت په وخت کې د خبرو حجاب :**

الله سبحانه وتعالی فرمايي:[... فَلاَ تَخْضَعْنَ بِالْقَوْلِ فَيَطْمَعَ الَّذِي فِي قَلْبِهِ مَرَضٌ وَقُلْنَ قَوْلاً مَّعْرُوفًا] [۱].

ژباړه: {په ويلو کې نرمي مه کوئ چې په زړه ناروغه خلکو ته به تمه پيدا شي او سمې روغې خبرې کوئ (څېرې)}.

يعنې: که د حاجت په وخت کې تاسې له نامحرمو سره په نرمه، خندرويه او جذابه لهجه خبرې وکړئ د بد کارو او فاسقو په زړه کې به دا تمه پيدا شي چې کواکې هغه زما سره د مينې او علاقې اظهار کوي نو په دې وجه د نامحرمو سره په نرمۍ او جذابه، خندرويه لهجه خبرې مه کوئ.

**د حجاب شرطونه**

**۱- حجاب بايد ټول بدن پټ کړی:**

مسلمانو ښځو ته الله (جل جلا له) داسې حکم کوي (يُدْنِينَ عَلَيْهِنَّ مِن جَلاَبِيبِهِنَّ) جلباب همغه درازه جامه ده چه ټول بدن پټوي. نتيجه دا شوه چه شرعي حجاب بايد ټول بدن پټ کړي، او دا لوی ټکری يا چادر به د قميس له پاسه اچوي، داسې نه چې د حجاب د چپنې يا لوی قميس له پاسه يو وړوکی ټکری وي چې سينه او نور بدن نه پټوي بلکې د قميس له پاسه به چادري، يا لوی چادر چې مخ هم ورباندې پټ وي اغوندي.

**۲- حجاب بايد نازک نه وي:**

د حجاب مطلب د بدن ستر دی داسې کومه پرده چې هغه بدن پټ نشی کړای تر پردې لاندې ويښتان، جامې او نور ښکاري هغه ته حجاب نشو ويلای.

**۳- حجاب بايد زينتي او د جالب رنګ لرونکی نه وي چه د خلکو انتظار خپل ځان طرف ته جلب کړي:**

د حجاب هدف دا دی چه د ښځې زينت او ښايست پټ کړي نو داسې پرده يا حجاب چې هغه د ښځې زينت ته خلک متوجې او جلبوي حجاب نه بلل کيږي، د قرآنکريم حکم دی (وَلاَ يُبْدِينَ

[۱]- سوره الاحزاب:۳۲.

زِينَتَهُنَّ إِلاَّ مَا ظَهَرَ مِنْهَا..) نو بايد حجاب د زينت ساتنه وكړي، په نن عصر كې ګلداره حجاب چې ډول ډول نقشونه وربانديې شوي وي د اسلامي حجاب موافق نه دى بلكي د اسلامي حجاب خلاف يو فيشن دى.

**۴- حجاب بايد پراخه وي تنګ نه وي:**

ترڅو د بدن لوړې، تيټى برخي او د فتنې ځايونه ښكاره نشي، مخكې مو وويل چې د (كاسيات عاريات) ښځو په اړه سخت وعيد راغلى دى، هغه ښځې د جامو با وجود برېنډې وي يعنې: تنګې او نرى جامې اغوندي د بدن ستر يې نه ورباندې پټيږي .

**۵- د ښځې جامى بايد په عطرونه وي لړلې:**

چې په نامحرمو يې بوى ولګي تر څو د خلكو د جلب سبب شي ځكه دا عمل حرام دى او ددې عمل په اړه په احاديثو كې شديد الفاظ راغلي دي: رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمايي: كله چه ښځه خوشبويي ووهي او د سړيو له ډلي تيريږي تر څو د هغې دغه ښه بوى خلک حس كړي، پس هغه داسې او هغسى ده، ډيره سخته او شديده وينا او په بل لفظ پس هغه زناكاره ده[1].

**۶- د ښځې جامى بايد د نرله جامې سره هيڅ مشابهت ونه لري:**

ځكه چه په جامه كې د ښځې مشابهت له نر سره او د نر مشابهت له ښځې سره حرام دى.

«لَعَنَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الرَّجُلَ يَلْبَسُ لِبْسَةَ الْمَرْأَةِ وَالْمَرْأَةَ تَلْبَسُ لِبْسَةَ الرَّجُلِ»[2].

ژباړه: رسول الله صلى الله عليه وسلم په هغه سړى لعنت فرمائيلى دى چه د ښځو په شان جامې اغوندي او په هغه ښځه چې د نر په شان جامي اغوندي.

**حجاب په څو كلنۍ كې فرض دى ؟**

كله چې ښځه بلوغ ته ورسيږي حجاب ورباندې فرض دى، مګر د بلوغ څخه مخكې حجاب كول مستحب او د فتنې څخه امن دى، والدين به خپلې لور ته د حجاب په اغوستلو امر كوي تر څو ورباندې عادت شي چې علماؤ دغه سن د لمانځه په قياس سره لس كاله ښودلى دى او د بي بي عايشې رضى الله عنها قول دا دى چې كله نجلۍ ۹ كلنه شوه حجاب به اغوندې.

[1]- رواه ابؤداود .
[2]- رواه ابؤداود.

جاء في فتاوي اللجنة الدائمة:

إذا بلغت البنت : وجب عليها أن تلبس ما يستر عورتها ، ومنها : الوجه ، والرأس ، والكفان ، سواء كانت تلميذة أم لا ، وعلى ولي أمرها أن يلزمها بذلك لو كرهت ، وينبغي له أن يمرنها على ذلك قبل البلوغ حتى تتعوده ، ويكون من السهل عليها الامتثال.[١] .

**د بلوغ علايم په لاندې ډول دي :**

١ - د نارينه او ښځينه د پاره احتلام كيدل ( په خوب كې په شهوت سره انزال ).

٢ - د شرمگا د ويښانو شنه کېدل.

٣ - په ښځو کې د حيض ښکاره کيدل.

**د بلوغ سن :**

د بلوغ په سن كې د فقهاؤ كرامو تر مينځ اختلاف نظر دى.

صاحبينو امام يوسف او امام محمد، امام شافعى او امام احمد په نزد د بلوغ سن پنځلس كاله دى او د امام ابوحنيفه په نزد د هلک (١٨) كاله او نجلى(١٧) كاله دى .

**د بې حجابۍ خپريدل لوى فتنه ده :**

رسول الله صلى الله عليه وسلم خپل امت ته پخوا د دوو لويو فتنو او بلاوو په اړه خبر وركړى دى چې يو د ظالمو چارواكو فتنه او بل بې حجابي ده.

د بې حجابۍ، بې سترۍ او مخ لوڅۍ خپريدل د آخرې زمانې لويه فتنه ده او د قيامت له نښو څخه يو نښه ده كوم چې دغه نښه اوس مهال په ښكاره توګه ليدل كيږي، ښځې بازارونو او لارو ته په داسې جامو كې وځي چې د فتنې ځايونه يې ښكاره وي .

ابى هريره رضى الله عنه وايي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمايلي: «صِنْفَانِ مِنْ أهلِ النَّارِ لمْ أرَهُما: قَوْمٌ معهم سِياطٌ كأذْنَابِ الْبقَرِ يَضْرِبونَ بِها النَّاس، ونِساء كاسياتٌ عارِياتٌ مُمِيَلاتٌ مَائِلاتٌ، رُؤُوسُهُنَّ كَأسْنِمةِ الْبُخْتِ المائِلَةِ لا يَدْخُلْنَ الجنَّة، ولا يجِدْنَ رِيحَهَا، وإِنَّ رِيحَهَا لَيُوجَدُ مِنْ مسِيرَةِ كذَا وكَذَا».

---

[١]- فتاوى اللجنة الدائمة " ( ١٧ / ٢١٩ , ٢٢٠ ) .

ژباړه: {په دوزخ کې دوې ډلې داسې دي چې تر اوسه ما نه دي ليدلې يو هغه ډله چې د هغوی په لاسونو کې د (غوايي د لکۍ په شان) قمچينه وي چې په هغې سره دوی نور خلک وهي دوهمه ډله هغه ښځې دي چې د جامو باوجود بربنډې وي (نری او باريکې جامې اغوندي) چې خلکو ته به خپل مذموم حرکات ښکاره کوي د هغوی سرونه به د اوښ د بوکام په شان وي دوی به نه جنت ته داخليږي او نه د جنت خوشبوي له دومره دومره فاصلې څخه مومي}.

امام النوَوِي رحمه الله په شرح مسلم (۷۱۰/۵) کې ليکي : دا حديث د نبوت له معجزاتو څخه دی او هغه څه اوس ښکاره دي کوم چې په اړه يې نبی صلی الله عليه وسلم خبر ورکړی دی.

له «أصحاب السياط» څخه مطلب د حکومت ظالم چارواکي ،پوليس او نور هغه کسان دي چې د خپل رعيت سره بد سلوک کوي، ناحقه ځورول، وهل او بې عزته کول وي.

«الکاسيات » څو معناوې لري:

د الله تعالی د نعمت پټول او شکر نه ايستل « کاسيات من نعمة الله،عاريات من شکرها».

په جامو به پټې وي ( په نعمت کې به ژوند کوي) خو د خير کار ، اطاعت او آخرت څخه به بې پروا وي.

د بدن څخه به يو شی د خپل جمال او ښايست د ښکاره کولو لپاره لوځوي.

ظاهراً به په جامه پټې وي خو جامه به يې داسې تنگه او يا نری وي چې د بدن د فتنې ځايونه به داسې ورڅخه ښکاري لکه چې لوڅه وي.

«مائلات مُمِيَلات» : د خپل زينت په ښکاره کولو سره به سړيو ته ميلان کوونکې وي او کوم کسان چې په زړه ناروغ دي هغوی به دوی ته ميلان کوونکي وي.

«رءوسهن کأَسنمة البخت» : ويښتان به يې د سر په پاسنۍ برخه کې د اوښ د بوکام په څير را ټول او درولي وي.

او ځنې علماء وايي : د اوښ بوکام اشاره ده کله چې د بيگانه سره مخامخ شي نو خپل سر به يې د اوښ د بوکام په شان پورته نيولی وي چې خپلې سترگې او سر به نه ښکته کوي.

او ځنې علماء وايي : د هغه ټول جمال به په سر او مخ کې جمع شوی وي نو د هغه د بدن لپاره به داسې وي لکه د اوښ بوکام، د اوښ بوکام لوړ وي نو د هغې شهوات، زینت او جمال به هم په لوړه برخه کې چې سر او مخ دی موجود وي.

« لا يدخلن الجنة» : دوې معناوې لري:

-کومه ښځه چې حرام حلال وګڼې ( بې حجابي ) نو له اسلام څخه وځي کچیرې بې توبې وفاته شي نو همیشه به په دوزخ کې وي، هیڅکله به جنت ته داخله نشي.

-او دا چې په حرمت يې عقيده لري خو د دغه عمل څخه که توبه و نه باسي نو هغه به د لومړي ځل د فائزينو (کامياب) سره جنت نه ځي، بلکي وروسته به د الله تعالی په اذن جنت ته داخليږي.

## په حجاب او ستر کې خپاره شوي ناوړه کارونه

### د پلار او خاوند، محارمو د کورپرته بل ځای کې د جامو بدلول:

په هوټل، بازار، حمام يا آرايشګاه او نورو عامه ځايونو کې چې د فتنې ويره وي د ښځو لپاره د جامو بدلول جواز نه لري، او همدارنګه دا يو کنايه ده چې بيګانه خلکو ته د خپل ستر او عورت ښکاره کول لويه بې شرمي ده.

رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمايي:« أَيُّمَا امْرَأَةٍ وَضَعَتْ ثِيَابَهَا فِي غَيْرِ بَيْتِ زَوْجِهَا فَقَدْ هَتَكَتْ سِتْرَ مَا بَيْنَهَا وَبَيْنَ اللَّهِ »[1].

ژباړه: هرې ښځې چې د خاوند د کور نه بغير بل ځای خپلې جامې ويستلې يقيناً هغې د خپل ځان او الله تعالی تر منځ پرده څيرې کړې ده[2].

---

[1]- صحيح أخرجه الترمذي وابن ماجه.

[2]- د يورتي حديث شريف په شرحه کي د حرمين شريفينو عالم ابن عثيمين رحمه الله وايي:
ددې څخه مقصد هر هغه ځای دی چيرې چې ددې ويره وي چې که ښځه خپلې جامې بدلې کړې نو د هغې د عورت او ستر د ښکاره کيدو ويره وي.
فالمراد أن المرأة تضع ثيابها في حال يخشى أن يطلع عليها من لا يحل له الاطلاع عليها " انتهى.
وجاء في "فتاوى اللجنة الدائمة" (224/17):
"مراده صلى الله عليه وسلم والله أعلم : منعها من التساهل في كشف ملابسها في غير بيت زوجها على وجه تُرى فيه عورتها ، وتتهم فيه لقصد فعل الفاحشة ونحو ذلك ، أما خلع ثيابها في محل آمن ، كبيت أهلها ومحارمها لإبدالها بغيرها ، أو للتنفس ونحو ذلك من المقاصد المباحة البعيدة عن الفتنة- فلا حرج في ذلك " انتهى.

په اوسني عصر کې مونږ وينو چې ځنې خويندې هوټلونو ته له ځانه سره جامې وړې يو يا دوه ساعته وروسته خپلې جامې بدلوي، چې دا اسراف، شهرت او افتخار او بې شرمي ده ځکه ځوک ددې ضمانت کولای شي چې هلته به پټې کامرې او و غيره نه وي.

او همدارنګه آرايشګاه سراسر د لعنت، فحشاء او بې دينۍ شيطاني ورکشاپ دی چې دغې شيطاني ورکشاپ ته د مسلمانې خور ورتلل مطلق حرام دي، او هره خور چې ورځي د الله تعالی د قهر او لعنت سبب دی.

**د بيګانه تکسي چلوونکي سره يوازې سفر:**

په ټيکسي و غيره کې بغير د نامحرم څخه سفر کول حرام دي.

رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمايي:«لا يَخْلُوَنَّ رَجُلٌ بِامْرَأَةٍ وَلا تُسَافِرَنَّ امْرَأَةٌ إِلا وَمَعَهَا مَحْرَمٌ»[1].

ژباړه: هيڅ بيګانه سړی به د بيګانه ښځې سره خلوت نه کوي او هيڅ ښځه دې بدون له محرم څخه سفر نه کوي.

«من كان يؤمن بالله واليوم الآخر فلا يَخْلُوَنَّ بامرأة ليس معها ذو محرم منها، فإن ثالثهما الشيطان»[2]

(ځوک چې پر الله او ورځ د آخرت ايمان لري هغه دې د ښځې سره چې محرم يې نه وي کېنون نه کوي ځکه چې دريم يې شيطان دی).

**له بيګانه سړيو سره د ښځو اختلاط او کېنون :**

په علمي مراکزو،پوهنتونو، مکتبونو دفترونو او بازارنو او نورو ځايونو کې د نارينه سره اختلاط او کېنون چې دا کار حرام عظيم فساد او د کفارو له سترو صفاتو څخه يو صفت دی چې د حرمت او ضررونو په اړه مو يو مکمل کتاب د «د اختلاط حرمت او اضرار» په نوم ليکلی دی او اختلاط لاندې زيانونه لري :

---

او د الجزائر عالم شيخ أبي عبد المعزِّ محمَّد علي فَركُوس حفظه الله وايي: يدخل في النهيِ نزعُ الثياب في الحمَّامات؛ إذ المرأةُ ـ غالبًا ـ لا تستر عورتَها مِنَ النساء، ولا وجهَ لدخولها في الوعيد إذا ما نَزَعَتْ ثيابَها عند محارمها أو بين نساء المؤمنين مع المحافظة على سَتْر العورة.

[1]- رواه البخاري:٣٠٠٦.

[2]- رواه أحمد وصححه الحاكم ووافقه الذهبي، وصححه الألباني في غاية المرام -١٨٠ .

په علمي مراکزو کې د نجونو او هلکانو اختلاط د ذهني کمزورۍ سبب ګرځي.

د فاحشې خپریدل او د خطرناکو جنسي ناروغیو خپریدل.

د حیا او شرم زوال او له منځه تلل .

اختلاط د ښځې شرافت او حیثیث له منځه وړي.

او بلاخره اخلاط د ټولو فتنو بنسټ دی.

**د غرب غیرمسلم پوهان اختلاط بندول غواړي:**

امریکایي لیکواله او د ځوانانو د چارو متخصصه «هیلسیا ستاتبسري» وايي:

عربي (اسلامي) ټولنه یوه کامله او جوړه ټولنه ده،اړینه ده چې د دغه ټولنې د هغو دودونو تقلید وشي کوم چې د نجونو او ځوانانو لپاره په یو منطیقي حد کې تاکل شوي دي .

د هغوی سره داسې دودونه او اخلاق دي چې بداخلاقۍ څخه یې لرې کړي دي کوم چې د امریکا او اورپا ټولنې کوابنې.

نو ځکه زه دا نصیحت کوم چې تاسې د هغوی د دودونو او اخلاقو پیروي وکړئ او د اختلاط مخنیوی وکړئ او د ښځې آزادي محدوده کړئ بلکي د حجاب او پردې عصر ته رجوع وکړئ نو دا کار به د تاسې لپاره د امریکا او اورپا د اوسني بد اخلاقۍ او لهو لعب څخه غوره وي .

نوموړې لیکواله بل ځای لیکي : د ټولو بلاوو بسنټ دا دی چې ښځه د خپل کور څخه ووځي او د نارینه سره ګډه شي نو په دې وجه هغه د خپل کور څخه لرې شي او غیر شرعي حمل واخلي د خپلې کورنۍ او ټولنې لپاره عار او پیغور جوړ شي پس د نارینه سره د ښځو اختلاط یا د نارینه لپاره د ښځو مزاحمت به مونږ ویجاړ او برباد کړي.

دوکتور سولیفان (Dr:Soliphan) وايي:

په امریکایي ټولنه کې د کورني نظام د پاشلو او زیاتو جرمونو وجه دا ده چې ښځې خپل کور پرېښې نو کورنۍ نظام ضعیف شو او د اخلاقو سطحه ټیټه شوه.

تجربو دا په ثبوت رسولې ده چې د هلاکت څخه د نوي نسل د خلاصون لپاره یوازنۍ لاره دا ده چې ښځه خپل حریم ته بیرته ور وګرځي.

جورج رائيلي (George Raely) وايي:

اختلاط د نارينه سره سيالي  يا د نارينه په څېر ځان جوړول دي نو ددې کار په تر سره کولو سره ښځې د فطرت مخالفت وکړ او څومره چې اختلاط زياتيږي په هماغه اندازه به د زنا اولاد زياديږي او دا دلته د ښځو لپاره ستره بلاء ده .

پروفسور کلين (Professor Clain) د آلمان د دولتي روغتون سر طبيب وايي :

کله چې د عقل او فکر خاوندان وغواړي داسې دين ته ور وګرځي چې په هغه کې فضيلت خوندي وي ،د ټولنې ساتنه پکې خوندي وي او د بشر د ژوند سعادت او نيکمرغې پکې خوندي وي نو دوی به اسلام يوازنی دين ومومي چې په پوره بري سره يې ددې ټولو د ساتنې ضمانت کړی دی.

اسلام داسې دين دی چې په هغه کې د ټولو اديانو نيکۍ او غوره والی موجود دی او په بل دين کې تاسې داسې نيکۍ نشئ موندلای .

مريم هاري يوه فرانسوۍ ليکواله مسلمانانو ښځو ته په يوه مقاله کې داسې ليکي:

ګرانو خويندو!

تاسو زمونږ په پلونو قدمونه مه ږدئ او زمونږ د اروپايې ښځو څخه پيروي مه کوئ ځکه تاسې په دې نه پوهيږئ چې مونږ دغه کرکجنه آزادي په کوم قيمت تر لاسه کړې خو زه تاسې ته يو څه ويل غواړم او هغه دا چې تاسو په خپلو پاکو کورنو کې پاکې اوسيږئ د اولادونو مهربانه ميندې اوسيږئ پر تاسې الله (جل جلا له) لوی رحم کړی پر تاسې يې په اسلام کې په واقعي توګه حقوق پيرزو کړي تاسو له نارينه و سره سيالې مه کوئ او ځانونه خوشي په دغو مسابقو کې مه ستړي کوئ کوشش وکړئ چې د خپلو ميړونو له پاره مهرباني او دردمنې ښځې ووسئ په خپلو کورونو کې د خپلو اولادونو مهربانه ميندې شئ او د مورولۍ وظايف سرته ورسوئ.

**د نامحرمو خپلوانو سره اختلاط :**

د ورينداريې د پاره د هغې لېور يا د خاوند ځېنې نور خپلوان لکه د کاکا زوی، د عمه زوی او نور نامحرم دي د هغو سره اختلاط، يوازې والی او سفر کول حرام دی او همداسې د خور خاوند او

نظر نورو نامحرمو ته د خاوند خپلوان ډیر خطرناک دي ځکه چې نظر نورو ته د فتنې شدیده ویره موجوده ده.

عَنْ عُقْبَةَ بْنِ عَامِرٍ رضى الله عنه: أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صلى الله عليه وسلم قَالَ: «إِيَّاكُمْ وَالدُّخُولَ عَلَى النِّسَاءِ». فَقَالَ رَجُلٌ مِنَ الأَنْصَارِ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، أَفَرَأَيْتَ الْحَمْوَ؟ قَالَ: «الْحَمْوُ الْمَوْتُ»[1].

ژباړه: {عقبه بن عامر وايي: رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل: د بيگانو ښځو د خلوت (له هغه سره يوازې كښيناستل. سفر كول او نور) څخه ځان وساتئ، د انصارو څخه يوه كس پوښتنه وكړه: يا رسول الله صلى الله عليه وسلم د خاوند د خپلوانو (د خاوند ورور لېور، د كاكا زوى، د عمه زوى) په اړه ستاسې نظر څه دى؟ وېې فرمايل «هلاكت په همدې كې دى »}.

حافظ ابن حجر په فتح الباري (۳۳۱/۹) كې وايي: په اتفاق د اهل لغت «احماء» د خاوند خپلوانو لكه د خاوند ورور، د خاوند د كاكازوى، د خاوند د عمه زوى او نورو ته وايي.

همدارنگه د علاج د پاره بغير له محرم څخه طبيب ته ورتلل او همدارنگه د علاج په وخت كې طبيبانو ته د هغه څه ښكارول چې ضرورت نه وي جواز نه لري.

**د نظر نه ساتل :**

په نارينه او ښځو دواړو باندې له بيگانه څخه د نظرساتل لازم دي:

اسلامي شريعت نارينه او ښځو ته له نامحرمو نه د ستركو د نظر ساتلو حكم كړى دى، الله سبحانه وتعالى فرمايي:[قُلْ لِلْمُؤْمِنِينَ يَغُضُّوا مِنْ أَبْصَارِهِمْ وَيَحْفَظُوا فُرُوجَهُمْ ذَلِكَ أَزْكَى لَهُمْ إِنَّ اللَّهَ خَبِيرٌ بِمَا يَصْنَعُونَ وَقُلْ لِلْمُؤْمِنَاتِ يَغْضُضْنَ مِنْ أَبْصَارِهِنَّ وَيَحْفَظْنَ فُرُوجَهُنَّ وَلا يُبْدِينَ زِينَتَهُنَّ إِلا مَا ظَهَرَ مِنْهَا][2].

**د نورو ښځو څخه د عورت ساتل :**

عبدالله بن مسعود رضي الله عنه روايت كوي چه رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمايي: « لا تُبَاشِرُ الْمَرْأَةُ الْمَرْأَةَ، فَتَنْعَتَهَا لِزَوْجِهَا كَأَنَّهُ يَنْظُرُ إِلَيْهَا »[3].

---

[1]- رواه البخارى:۵۲۳۲.
[2]- سوره النور :۳۱.
[3]- رواه البخاري.

ژباړه: ښځه به د بلې ښځې سره لوڅ بدن یا کوم اندام نه نښلوي او د هغې صفت به خپل خاوند ته نه بیانوي ګواکې دا داسې دی لکه خاوند یې چې د هغې ښځې طرف ته نظر کوي.

همدارنګه مسلم شریف داسې روایت نقل کړی دی: «لا ینظر الرجل إلى عورة الرجل. ولا المَرأة إلى عورة المرأة. ولا یفضي الرجل إلى الرجل في ثوب واحد. ولا تفضي المرأة إلى المرأة في الثوب الواحد».

ژباړه: سړی به د بل سړي عورت ته نه ګوري او ښځه به د بلې ښځې عورت ته نه ګوري او نه به یو سړی له بل سړي سره په یو لباس کې څملي، نه به ښځه له بلې ښځې سره په یو لباس کې څملي.

**د کافرو ښځو څخه لرېوالی:**

(په بهرنیو هیوادونو کې د میشتو کسانو لپاره مهم نصیحت دی نو تر پایه یې په پوره حوصله ولولئ )!

کومې مسلمانې خویندې چې غربي او کفري هیوادونو کې اوسېږي هغوی ته پکار ده چې د کافرو ښځو څخه لرې ووسئ، پارک، میله ځایونو او نورو ځایونو ته ور سره لاړې نشي، مسلمانانو ته پکار ده چې پخپل مینځ کې سره ټول شي په خپلو منځونو کې راشه درشه ولري او ضرور جومات ولري او کچیرې د جومات د ساختمان ځای او امکانات نه وي باید یو ځای په کرایه ونیسي او د مسلمانانو د ټولیدو، دیني درس او دیني وعظ او بیان ځای موجود وي که داسې نه وي نو مسلمانان او د مسلمانانو نوي نسلونه د کفري طاغوت ښکار ګرځي، رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایلي : که په کوم کلي یا صحراء کې درې کسان وي او دوی د جماعت لمونځ ادا نه کړي نو پر دوی باندې به شیطان مسلط شي. فعلیکم بالجماعة فَإِنَّمَا یأكُلُ الذِئبُ من الغَنم القَاصِیةَ .

ژباړه : نو تاسې د جماعت لمونځ ادا کوئ ځکه چې لیوه هغه پسه خوري چې له رمې څخه جلا وي.

مسلمانې خويندې به څکه له کافرو ښځو څخه لرې ګرځي چې هغوی ته دين، حجاب، پاکدامني او حلال حرام کوم اهميت نه لري .
که څه هم تاسې ته به د هغوی تنالوژې او ظاهري ډول سينګار ښه ښکاري مګر دا ټولنه د اخلاقي او انساني ارزښتونو لرې په فحاشت کې غرقه ټولنه ده.
يوه عربي مجله د غربي ټولنې حالت داسې بيانوي :
يو کس مې په فرانسه کې وليد چې په فکر کې وو، ما ورته وويل: څه فکر کوې؟ ويې ويل: دا فکر کوم چې خپل پلار څنګه ووژنم، ما ويل ولې ؟ ويې ويل: يوه نجلۍ مې خوښه وه هغه يې زما څخه واخيسله، نو دا د هغوی د اولادونو د تعامل او سلوک کچه ده له خپلو والدينو سره[1].
يو بل امريکايي ځوان را ته وويل: زما يوه نجلۍ خوښه وه نو د هغه سره د واده کولو لپاره مې له خپل پلار څخه اجازت وغوښتلو، پلار مې را ته وويل: هغه ستا هم خور ده او هم ستا مور ده خو ته نه پوهيږې، بيا مې بله خوښه کړه د هغې په اړه يې هم همدا خبره را ته وکړه او دريمه مې هم خوښه کړه د هغې په اړه يې هم دا خبره وکړه بيا مې خپلې مور ته دا عرض وړاندې کړ هغې را ته وويل: زويه کومه دې چې خوښه ده د هغې سره واده وکړه ، ته هم د هغه زوی نه يې خو پلار دې خبر نه دی ( ته هم حرامي يې خو پلار دې خبر نه دی). نو د کفارو همدا حال دی[2].
سي ان ان پخپل يو راپور کې وايي چې په امريکا کې ځنې شميرې څرګندوي چې په دغه هيواد کې د ناوړه فحاشت له امله ۶۵ ميليونه کسان په داسې جنسي نارغيو باندې اخته دي چې علاج نلري.
نو په دې وجه مسلمانې خويندې بايد د کافرو ښځو له ملګری‌او ارتباط څخه ځان وساتي چې دين او حياء ته يې زيان رسيږي .
جرير بن عبد الله رضی الله عنه وايي چې رسول الله صلی الله عليه وسلم فرمايلي:«أَنَا بَرِيءٌ مِنْ كُلِّ مُسْلِمٍ يُقِيمُ بَيْنَ أَظْهُرِ الْمُشْرِكِينَ»[3] .

---

[1]- قال لي أحدهم: ذهبتُ إلى فرنسا و رأى شابّاً ،قال له: بماذا تفكّر؟ قال له: أُفكّر أن أقتل أبي، فقال له: لماذا ؟ فقال: أحبّ فتاةً فأخذها منّي، هذا مستوى تعامل الآباء مع الأبناء هناك.
[2]- أنّ شابّاً في أمريكا أحبّ فتاةً فاستأذن أباه في الزواج منها، فقال له: لا يا بنيّ إنها أختك وأمّك لا تدري، فلمّا رأى فتاةً ثانية أعجبتهُ، وعرض على أبيه هذا الأمر، فقال له: لا يا بنيّ إنها أختك وأمّك لا تدري، فلمّا أعجبته فتاةٌ ثالثة واستأذن أباه مرّة ثالثة فقال له: لا يا بنيّ إنها أختك وأمّك لا تدري، فلمّا ضجِر الشابّ عرض الأمر على أُمّه، فقالت: خذ أيّهن شئْت فأنت لسْتَ ابنه وهو لا يدري !! هكذا حال الكفار.
[3]- رواه أبو داود ( 2645 ) والترمذي ( 1604 ) .

ژباړه : زه له هر هغه مسلمان څخه بېزاره يم چې د مشرکينو په منځ کې اوسېږي.

د « بَرِيءٌ » معنى له اسلام څخه وتل نه دي بلکې داسې کول لويه ګناه ده ( په هغه صورت چې څوک اسلام پوره عملي نشي کړلی).

جرير بن عبدالله البجلي رضي الله عنه وايي چې ما په دغه خبرو له رسول الله صلى الله عليه وسلم سره بيعت وکړ :

« أَنْ تَعْبُدَ اللَّهَ وَتُقِيمَ الصَّلاَةَ وَتُؤْتِيَ الزَّكَاةَ وَتُنَاصِحَ الْمُسْلِمِينَ وَتُفَارِقَ الْمُشْرِكِينَ»[١]

ژباړه : چې يوازې به د الله عبادت کوم، لمونځ به ادا کوم، زکات به ورکوم، او مسلمانانو ته به نصيحت کوم او له کفارو او مشرکينو څخه به جلا کېږم.

[١]- أخرجه النسائي (4177) وأحمد (19253)، والبيهقي (18207).

## څلورم فصل

## د زينت او سينګار أحکام

اسلام د ښځې په زينت او سينګار باندې زيات اهتمام کړی دی او هغه څه يې ورته مباح کړي دي چې د نارينه لپاره يې نه دي جايز کړي لکه : ابريشم او د سرو زرو زيورات،سور او زيړ رنګ جامه او د سر د ويښتانو پريښودل مګر د دومره زيات اهتمام سره سره يې د هغې د عفت او حيثيت د ساتنې لپاره پولې او ضوابط ټاکلي دي چې ځنې په لاندې توګه دي:

اول : دا چې د نارينه سره مشابهت کول به پکې نه وي .

دوهم: دا چې د کافرو، اهل بدعت او اهل فساد سره مشابهت به پکې نه وي .

دريم : دا چې په دغه زينت کې به بدن ته ضرر نه وي «لاضرر و لا ضرار في الاسلام» (په اسلام کې ځان او بل ته ضرر رسول حرام دي).

څلورم: دا چې اسراف به پکې نه وي ځکه چې په شريعت کې اسراف کول حرام دي.

پنځم: دا چې د الله تعالی په خلقت کې بدلون راوستل به پکې نه وي، لکه: د خال وهل، د وريځو د ويښتانو جوړول او نور.

شپږم : دا چې فريب او دوکه به پکې نه وي ځکه چې فريب او توکه کول حرام دي.

اووم : په حرام شي سره زينت کول به پکې نه وي .

آتم : او د زينت ښکاره کول بيګانه خلکو ته جواز نه لري،[وَلاَ يُبْدِينَ زِينَتَهُنَّ إِلاَّ مَا ظَهَرَ مِنْهَا] (او خپل سينګار دې نه ښکاره کوي پر ته له هغه چې خپله څرګند شي).

### لومړی بحث : د ويښتانو زينت

**اول- د سر ويښتانو څه ډول جوړول :**

هرې ښځې ته لازمه ده چې د خپل سر د ويښتانو ساتنه وکړي، نظافت يي وساتي، پاملرنه ورته وکړي د کوڅيو په ډول يي جوړ کړي مګر د ښځو لپاره روا نه ده چې د سر ويښتان د سر په وسط او يا د سر په څټ کې غونډ کړي.

نن ورځ ځينې مسلمانې ښځې د خپل سر ويښتان په يوه طرف د سر کې غونډوي، يا يې د سر شا ته راټولوي او يا يې د سر پاسنۍ برخې ته ټولوي او د اوښ د بوکام په شان يې دروليي وي په همدغه شکل سره فرنګی ښځې هم آرايش کوي.

مسلمانو ښځو! واروئ داسې کول حرام دي په اړه يې سخت وعيد راغلی دی.

رسول الله صلی الله عليه وسلم فرمايلي :«صنفان من أهل النار لم أرهما. قوم معهم سياط كأذناب البقر يضربون بها الناس. ونساء كاسيات عاريات، مميلات مائلات، رؤسهن كأسنمة البخت المائلة، لا يدخلن الجنة، ولا يجدن ريحها. وإن ريحها ليوجد من مسيرة كذا وكذا»[1].

ژباړه: په دوزخ کې دوې ډلې داسې دی چې تر اوسه ما نه دي ليدلي يو هغه ډله چې د هغوی په لاسونو کې د (غوايي د لکۍ په شان) قمچينه وي چې په هغې سره دوی نور خلک وهي دوهمه ډله هغه ښځې دي چې د جامو باوجود بربنډې وي (نرى او باريکې جامې اغوندي) چې خلکو ته به خپل مذموم حرکات ښکاره کوي د هغوی سرونه به د اوښ د بوکام په شان وي دوی به نه جنت ته داخليږي او نه د جنت بوی له دومره دومره فاصلې څخه مومي.

**دوهم : د سر د ويښتانو خريل :**

بايد چې هره مسلمانه ښځه د خپل سر ويښتان پريږدي د ضرورت نه بغير د ويښتانو خريل حرام دي.

په دليل د دغه حديث شريف: «نَهَى رسول الله صلي الله عليه وسلم ان تَحلِقَ المَرأَةُ رَأسَها»[2] .

ژباړه: رسول الله صلی الله عليه وسلم ښځه د ويښتانو د خريلو نه منع کړې ده.

ملا علي قاري الأفغاني په کتاب د «المرقاة شرح المشکاة» کې وايي دي: قوله: «ان تحلق المراة راسها»،يعنې: د ښځې د پاره د سر د ويښتانو خريل منع دي .

د سر ويښتان د ښځې په حسن او ښکلا کې ډېره ونډه لري لکه د نارينه وو لپاره چې په ږيره کې جمال او ښکلا ده.

[1]- رواه مسلم:۲۱۲۸.
[2]- رواه الترمذي و النسائي.

**دريم : د ويښتانو کمول :**

که چيرې د ښځې موخه د سر د ويښتانو د لنډولو څخه د کفارو ښځو او د نارينه وو سره مشابهت او تقليد وي نو بې له شکه دغه کار حرام دی.

په دليل د دغه حديث شريف :«لعن الله من المتشبهين بالنساء و المتشبهات بالرجال. »

و جاء في الدر المختار :

و فيه (المجتبى) قطعت شَعر رأسها أثمت و لعنت، و زاد فى البزازية: و ان كان باذن الزوج لأنه لا طاعة لمخلوق فى معصية الخالق.[1]

ژباړه : د ښځې لپاره د سر د ويښتانو لنډول ګناه او د لعنت سبب دی، او بزازيه زياتوي: او که د خاوند اجازت او يا حکم هم وي نو د هغه اطاعت واجب نه دی ځکه د خالق په نافرمانۍ کې د مخلوق فرمانبرداري نشته.

د عربستان پخوانی مفتي شيخ محمد ابراهيم پخپل کتاب مجموع فتاوی کې ليکي:

د ويښتانو لنډولو رسم او رواج چې په ډېرو اسلامي هيوادونو کې شتون لري دا طريقه او عادت د فرنګيانو ښځو دی او په بشپړ ډول د مسلمانو ښځو د عرف او عاداتو مخالف عمل دی او دا د هغه انحرافاتو له ډلې څخه دی چې له بده مرغه زمونږ په دين، اخلاقو او د ژوندانه په ډېرو نورو چارو کې يې هم نفوذ کړی دی وروسته له دې په ځواب ددې حديث کې «وَكَانَ أَزْوَاجُ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَأْخُذْنَ مِنْ رُءُوسِهِنَّ حَتَّى تَكُونَ كَالْوَفْرَةِ».

داسې وايي: د رسول الله صلى الله عليه وسلم مبارکو ميرمنو د آن حضرت صلى الله عليه وسلم د وفات وروسته د سر ويښتان لنډول البته د ژوندانه په وخت کې به يې د خپل ځان سينګار کولو او غوره سينګار يې د سر ويښتان وو، وروسته د آن حضرت صلى الله عليه وسلم له وفاته د هغوي لپاره ځانګړی حکم وو چې د ځمکې پر مخ د هيڅ ښځينه د پاره هغه حکم نشته، ځکه د رسول الله صلى الله عليه وسلم د مبارکو ميرمنو د پاره د بل چا سره نکاح کول منع وو او هغوی د واده کولو څخه بالکل ناهليې وې هغوی د رسول الله صلي الله عليه وسلم د وفات په

[1] - الدرالمختار مع لرد: ۲۸۸/۵.

سبب تول ژوند د عدت د دوري د تیرولو په شان وې چې د مرګ تر لحظې پورې محبوسې وې او د واده حق یې د هیچا سره نه درلود.

**څلورم، د ویښتانو وصلول :**

لکه څنګه چې مسلمانې ښځې ته له کوم عذر او ضرورت پرته د ویښتانو خریل او یا لنډول جواز نه لري، په همدې شان د ویښتانو له پیوند کولو او یا له خپلو ویښتانو سره د نورو ویښتانو وصلولو څخه هم منع شوې ده، او همدارنګه د سترګو د بانو سره د مصنوعي بانو وصلول منع دي،په دلیل د دغه حدیث چې په صحیح بخاري او مسلم کې راغلي دی: «لعن رسول الله صلی الله علیه وسلم الواصلة والمستوصلة».

ژباړه: رسول الله صلي الله علیه وسلم لعنت ویلای دی پر هغه ښځه چې ویښتان له نورو ویښتانو سره پیوند کوي او همدا شان هغه ښځه چې دغه کار کوي.

د «الواصلة» څخه مطلب هغه ښځه ده چې خپل ویښتان له نورو ویښتانو سره پیوند کوي او د «المستوصلة» څخه مطلب هغه ښځه ده چې دغه د پیوند کولو کار تر سره کوي (آرایشګاه).

**پنځم، د ویښتان خرخول حرام دي :**

په اوس عصر کې ځنې خویندې د سر څخه تویې شوي ویښتان خرڅوي خو د انسان او یا د هغه د کومې حصې او اندام خرڅول او اخیستل په اتفاق د فقهاوو حرام دي ، ځکه چې انسان الله تعالی أشرف المخلوق پیدا کړی دی.

ابی هریره رضی الله عنه وایي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایلي: «قَالَ اللَّهُ: ثَلاثَةٌ أَنَا خَصْمُهُمْ يَوْمَ الْقِيَامَةِ: رَجُلٌ أَعْطَى بِي ثُمَّ غَدَرَ، وَرَجُلٌ بَاعَ حُرًّا فَأَكَلَ ثَمَنَهُ، وَرَجُلٌ اسْتَأْجَرَ أَجِيرًا فَاسْتَوْفَى مِنْهُ وَلَمْ يُعْطِ أَجْرَهُ»[1].

ژباړه : دری کسان دي چې د قیامت په ورځ به د هغوی دوښمن وم ، اول : هغه کس چې زما په نوم تعهد وکړي او بیا خیانت وکړي، دوهم : هغه څوک چې آزاد کس و پلوري او د هغه قیمت وخوري، دریم : هغه څوک چې یو کس څخه کار واخلي خو مزدوري یې ور نه کړي.

---

[1]- رواه البخاري:۲۲۲۷.

د انسان د ويښتانو خرڅول او اخيستل او د هغه څخه په بل شي کې استفاده کول که هغه د نارينه وي يا ښځينه په اتفاق د فقهاوو حرام دي.

جاء في " الموسوعة الفقهية " ( 26 / 102):

واتّفق الفقهاء على عدم جواز الانتفاع بشَعْر الآدميّ بيعاً واستعمالاً ؛ لأنّ الآدميّ مكرّم ، لقوله سبحانه وتعالى : ( وَلَقَدْ كَرَّمْنَا بَنِي آدَمَ ) .

**شپږم : د وريځو د ويښتانو ايستل حرام دي:**

پر هغه ښځه باندې د الله تعالی لعنت دی چې خپلې وريځې د سينګار په نيت نرى جوړوي او همداسې هغه ښځه چې دغه کار تر سره کوي لکه په نن عصر کې آرايشګاه .

يعنې د وريځو ويښتان وباسي او غواړي د الله تعالی په جوړښت کې تغير راولي او خپله طبيعي ښکلا په پلاستيکي ښکلا بدله کړي.

رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمايلي:« لَعَنَ اللَّهُ الْوَاشِمَاتِ وَالْمُسْتَوْشِمَاتِ ، وَالنَّامِصَاتِ وَالْمُتَنَمِّصَاتِ...»[١] .

ژباړه: {الله تعالی لعنت کړی څوک چه خال وهي او هغه چه د خال وهلو خيال وکړي،او هغه څوک چه وروځې نرۍ جوړوي او هغه چې د وروځو د نرى جوړولو خيال کوي}.

الله تعالی چې پر مؤمنانو باندې کوم شی حرام کړي دي نو په هغه کې يو حکمت موجود وي :

د عصري طب څېړنې ښيي چې د وريځو د ويښتانو ايستلو په وجه په ځنو ښځو کې د سترګې چاپيره التهاب را منځته کړی دی .

د طب استاذ دوکتور وهبة أحمد حسن وايي: د وريځو د ويښتانو لرې کول او بيا د ورځو تورلو لپاره د قلم استعمال د جلد لپاره ضرر لري چې د جلد د التهاب او حساسيت سبب ګرځي.

همدارنګه د مصنوعي باڼو اچول او د شرعي عذر پرته د مصنوعي ويښتانو اچول او وصلول حرام دي او په داسې ښځو لعنت دی:

«لَعَنَ رسول الله صلى الله عليه وسلم الْوَاصِلَةِ وَالْمُسْتَوْصِلَةِ».

---

[١]- رواه البخاري.

د سترګو د باڼو سره مصنوعي باڼه وصلول حرام دي او د ويښتانو په عام وصلولو کې شامل دي کوم چې د لعنت سبب دی.

همدارنګه د باڼو د وصل لپاره د نيکل او يو قسم پلاستيکي مادې څخه کار اخيستل کيږي چې د باڼو د پوستکې د التهاب سبب ګرځوي او د باڼو د تويېدو سبب کيږي او د باڼو چسپولو لپاره چې کوم مواد کارول کيږي پوستکي ته د اوبو مخ نيسي چې ددې باڼو سره اودس او غسل نه صحي کيږي[1].

**ضروري مسائل:**

د مخ لاسونو او پښو څخه د اضافي ويښتانو لرې کول جايز دي؟

جواب:هو د ښځې د پاره د خاوند په اجازه د وريځو پرته د مخ لاسونو، پښو د ويښتانو لرې کول جايز دي[2].

د مصنوعي ويښتانو ګنډل او ايښودل څه حکم لري؟

ځواب : کچيرې د چا ويښتان د کوم مرض يا سوزيدو يا بله وجه تويي شي او يا يې د سر کومه برخه پکه وي نو هغه ته د عيب د له مينځه وړلو د پاره دا جايز ده چې د سر د ځنو برخو ويښتان وباسي او هغه په تويي شوې او پکه شوې برخه کې وکري.

جاء في مجتمع فقه اسلامي : تجوز زراعة الشعر لمن سقط شعره لمرض أو حادث، لأن ذلك من باب إزالة العيب ( قرار مجمع الفقه الإسلامي المنبثق عن منظمة المؤتمر الإسلامي المنعقد في دورته الثامنة عشرة في (ماليزيا) من 24 إلى 29 جمادى الآخرة 1428هـ،الموافق 9– 14تموز (يوليو)2007م، ).

---

[1]- جاء في فتاوى اللجنة الدائمة: لا يجوز استخدام الأظافر الصناعية، والرموش المستعارة،لما فيها من الضرر على محالها من الجسم، ولما فيها ـ أيضا ـ من الغش وتغيير خلق الله. كما أنّه توجد في الرموش الصناعية بعض المواد التي تحتوي على أملاح النيكل، أو المطاط الصناعي التي تتسبّب باحتمالية الإصابة بالتهاب الجفون مما يؤدّي إلى تساقط الرموش.
و جاء في فتاوى الاسلام سوال جواب: الرموش الصناعية لها حكم وصل الشعر" «لعن رسول الله صلى الله عليه وسلم الواصلة والمستوصلة.
و جاء في فتاوى الاسلام ويب: تركيب الرموش الصناعية فيه وصل واتباع للشيطان في تغيير خلق الله.
الأهداب أو رموش العين ، يجب إيصال الماء إليها في الوضوء والغسل...فمنع وصول الماء إلى شيء من العضو لم تصح طهارته سواء أكثر ذلك أم قل.

[2]- الفتاوي الهندية:۳۵۸/۵، رد المحتار:۲۶۴/۵، فتاوي رشيديه:۴۸۵، جديد فقهي مسائل.

**اووم : د ویښتانو رنګول :**

لومړی د مؤمن مسلمان د سپینو ویښتانو فضیلت :

سپین ویښتان او په اسلام کې د ویښتانو سپین والی د مؤمن نارینه او ښځینه عزت، وقار او په قیامت کې نور دی، رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایلي: «مَنْ شَابَ شَيْبَةً فِي الاسلامِ كَانَتْ لَهُ نُوراً يَومَ القِيامة » [١].

ژباړه : چا چې په اسلام کې یو ویښته سپین کړ نو هغه لره به په قیامت کې نور وي.

و فرمایي: «الشَيْب نُور المؤمن، لا يَشيبُ رَجُلُ شيبةً في الاسلام الا كانَتْ لهُ بِكل شَيبةٍ حسنَةً و رَفَع بها دَرَجةً » [٢]

ژباړه : سپین ویښتان د مؤمن نور دی، څوک چې په اسلام کې ویښته سپین کړي نو د هر ویښته په بدل کې به هغه لره یو نیکي وي او په هغه سره به یې یو درجه لوړیږي.

او د سپینو ویښتانو ایستل منع دي په حدیث شریف کې راغلي« لاَ تَنْتِفُوا الشَّيْب،فَإِنَّهُ نُورُ الْمُسْلِمِ يوْمَ الْقِيامةِ » [٣]

ژباړه: سپین ویښته مه باسئ ځکه چې سپین ویښته د قیامت په ورځ د مؤمن لپاره نور وي.

**د سپینو ویښتانو تغیر او رنګ:**

د تور رنګ څخه پرته سور او نور رنګونو باندې د سپینو ویښتانو بدلون او رنګ جایز دي،رسول الله صلی الله علیه وسلم د ابوبکر صدیق رضی الله عنه پلار ته وفرمایل: « غَيِّرُوا هَذا واجْتَنِبُوا السَّوادَ » [٤].

ژباړه: دا سپین والی په رنګ سره تغیر کړه او له تور رنګ څخه پرهیز کوه .

حتی په نکریزو باندې د ویښتانو سره کول مستحب دي [٥].

---

[١]- روا البيهقي، ابن حبان و السلسة الصحيحة:٢٤٨/٣و صحيح الجامع:٦٣٠٧.

[٢]- رواه البيهقي و صحيح الجامع: ٣٧٤٨.

[٣]- رواهُ أبو داودَ والتِّرْمِذِي، والنسائِيُّ بأَسَانِيدَ حسنَة، قَالَ الترمذي: هُو حديثٌ حَسَن.

[٤]- رواه مسلم .

[٥]- جاء في حاشيه ابن عابدِين (٤٨١/٥):قال علامة المشايخ انه مكروه، بعضهم جوزه، مروي عن أبي يوسف أما بالحُمرة فهو سنة الرجال و سيما المسلمين، جاء في فتاوى اللجنة الدائمة (١٨٥/٥): تغير الشَّيب بِصَبغِ شعر الرأس و اللحية بالحناء، و نحوهما: جايز، بل مستحب و تغييره بالصَبغ الأسود لايجوز .

مګر په تور رنګ باندې د ویښتانو رنګ کولو په اړه منع راغلې ده « واجْتَنبُوا السَّوادَ » او په اړه یې د علماوو تر منځ اختلاف دی چې ځنې وایي مکروه دی او ځنې وایي حرام.

ابن عباس رضی الله عنه وایي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایلي: «یکونُ قومٌ یخضِبُون في آخرِ الزَّمانِ بالسَّوادِ کحَواصِلِ الحمامِ لا یَرِیحون رائحةَ الجنَّةِ»[1].

ژباړه: په آخر زمان کې به داسې خلک وي چې دوی به تور رنګ لګوي لکه د کوترو سینې، هغوی به د جنت بوی هم و نه ویني.

امام نوَوي رحمه الله په شرح مسلم (۸۰/۱۴) کې وایي : صحیح قول دا دی چې په تور رنګ رنګول حرام دي او ځنې وایي مکروه دي خو مختار قول حرمت دی په دلیل د دغه حدیث شریف : «و اجتنبوا السَّوَاد » .

و الله سبحانه وتعالی اعلم .

## دوهم بحث، د مخ او لاسونو زینت او سینګار

### اول – د رنګه عینکو استعمال :

د سترګو د علاج پرته د زینت لپاره د رنګه عینکو استعمال په هغه صورت کې جایز دی چې سترګو ته ضرر نه وي، د فریب او دوکې لپاره نه وي او د بیګانه خلکو لپاره نه وي[2].

### دوهم: د پوډرو، رنګونو او کریمو استعمال:

د زینت او سینګار لپاره د پوډر، رنګ او کریم استعمال په هغه صورت کې جایز دی چې پوستکي ته ضرر و نه لري ځکه په زینت کې اصل اباحت دی، خو ډاکټران دا توصیه کوي چې د دغو پوډرو، رنګونو او کریمو زیات او دوامداره استعمال د مخ په تازه والی باندې تأثیر کوي او د وخت څخه مخکې د ګونځو سبب ګرځي.

د شونډو سره کولو په اړه معاصر فقهاء وایي چې کچیرې بیګانه خلکو ته ښکاره نشي او نجس شی پکې نه وي لکه د خنځیر اجزاء او د پوستکي لپاره ضرر و نه لري نو باک نه لري ځکه په اړه یې د منع شرعي دلیل نه دی راغلی، مګر زمونږ د ټولنې په عرف کې ښه نه بلل کیږي او د یوې

---

[1]- صحیح الجامع : ۸۱۵۳، صحیح الترغیب :۲۰۹۷و سنن أبي داود، اسناده صحیح :۴۲۱۲.
[2]- مرکز الفتاوی الاسلام ویب رقم الفتاوی:۹۹۵۵۲، الاسلام سوال جواب – الزینة:۹۲۶.

مسلمانې خور سره نه ښايي چې خپله طبيعي ښکلا په مصنوعي ښکلا بدله کړي نو د دغه رنګ ځخه پرهيز کول غوره دي.

فاذا كان لا تظهر به أمام الأجانب ولا يحتوي على مواد نجسة كمشتقات الخنزير، و لم يكن ضاراً بالجلد فيجوز استعماله و خصوصاً للتَجَمُل للزوج.[1]

**دريم: په غاښونو کې د فاصلې جوړول :**

او پر هغه ښځه او سړي باندې د الله تعالى لعنت دى چې د الله تعالى په خلقت او جوړښت کې بدلون راولي (د غاښونو تر منځ فاصلې رامنځته کوي، غاښونه سيده کوي) .

د کوم شرعي ضرورت پرته د غاښونو تر منځ فاصلې را منځته کول، يا د کوم تکليف او ازار پرته د کږو غاښونو سيده کول چې په نوي طب کې ورته «اوتودنسي» وايي حرام دي .

په حديث شريف کې راغلي:«لعنَ اللَّه الْواشِماتِ ....، الْمُتَفَلِّجَاتِ لِلحُسْن، المُغَيِّراتِ خَلْقِ اللَّه»[2]

ژباړه: {د الله لعنت دى په خال وهونکې.... او د زينت لپاره د غاښونو تر منځ فاصله جوړول او د زينت لپاره د غاښونو سيده کوونکو باندې، د الله په جوړښت کې بدلون را وستونکوو باندې}.

**ځلورم: د خالونو او رسمونو جوړول:**

د ستن او نکريزو په وسيله په مخ، لاسونو او نورو اندامونو باندې د خال او رسمونو جوړول چې اثر يې نه ځي حرام دي ... رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمايلي:« لَعَنَ اللَّهُ الْوَاشِمَاتِ وَالْمُسْتَوْشِمَاتِ...»[3]

ژباړه: الله تعالى لعنت کړى ځوک چه خال وهي او هغه چه د خال وهلو خيال وکړي.

**پنځم: د نوکانو رنګ:**

د نوکانو رنګ (رنګ ناخن) چې په عربي کې ورته «طلاء الأظافر» وايي له ځانه حجم لري او نوکانو ته د اوبو رسيدو ځخه مخنيوى کوي چې له دغه رنګ سره اودس او غسل نه صحي کيږي ...

فتاوي عالمګيري ليکي: اولزق باصل ظفر طيس يابس او رطب لم يجز .

---

[1] - فتاوى الاسلام سوال جواب.
[2] - حديث متفق عليه .
[3] - رواه بخاري.

یعنې: کچېرې په اصل نوک پورې وچه یا لنده خټه موښتې وي نو پر هغه باندې صرف د اوبو تېرېدل کافي نه دي.[1]

او همدارنګه د ښځې لپاره د مصنوعي نوکانو اچول او وصل جواز نلري او داسې وصلول دي لکه د ویښتانو سره د نورو مصنوعي ویښتانو وصلول.

وقال رسول الله صلى الله عليه وسلم :«لعن الله الواصلة والمستوصلة».

یعنې: {الله تعالی لعنت کړی دی د ویښتانو په وصلونکو او هغه چې د ویښتانو وصلول غواړي.

جاء في فتاوى اللجنة الدائمة: لا يجوز استخدام الأظافر الصناعية، والرموش المستعارة،لما فيها من الضرر على محالها من الجسم، ولما فيها . أيضا . من الغش وتغيير خلق الله.

یعنې: د مصنوعي نوکانو او مصنوعي بانو اچول حرام دي ځکه په دې کې ضرر دی او همدارنګه چل او فریب او د الله تعالی په جوړښت کې بدلون را وستل پکې دي.

**شپږم: د نکریزو او رنجو استعمال :**

د ښځې د پاره په نکریزو باندې د لاسونو او پښو رنګول جایز دي په دلیل د دغه حدیث شریف: له عائشه رضي الله عنها نه روایت دی چه: «أومت امرأة من وراء ستر بيدها كتاب إلى رسول الله -صلى الله عليه وسلم- فقبض النبي -صلى الله عليه وسلم- يده، فقال: ما أدري أيد رجل أم يد امرأة قالت: بل امرأة، قال: لو كنت امرأة لغيّرت أظفارها، يعني بالحناء» [2].

ژباړه: یوې ښځې د پردې د شا نه پخپل لاس سره رسول الله صلی الله علیه وسلم ته لیک ورکړ، آنحضرت صلی الله علیه وسلم خپل لاس مبارک بیرته کړ او ویې فرمایل: زه نه پوهیږم چه آیا دغه لاس د نر دی او که د ښځې،ښځې وویل: د ښځې لاس دی، رسول الله صلی الله علیه وسلم په ځواب کې وفرمایل: که چېرې د ښځې لاس وي نو خپل نوکان به یې په حنا (نکریزو) رنګ کړی وای.

او همدانګه د زینت لپاره د رنجو استعمال جایز دی.

د ښځو لپاره په لاندې صورتونو کې د رنجو استعمال مستحب دی:

---

[1]- فقه حنفي ابوالمختار: ص ۴۷۷.
[2]- رواه أبوداود والنسائي.

۱- کله چې د حداد ( د خاوند د وفات عدت) پوره شي.

۲- کله چې احرام څخه فارغه شي.

۳- کله چې د هغې سترګې درد کوي، کله أم سلمه رضی الله عنها چې د سترګو څخه د شکایت په وخت کې د رنجو د استعمال اجازت غوښتلی وو.

۴- د خاوند ته د سنګار لپاره.

## دریم بحث، د لباس زینت

لباس او جامه پر انسانانو باندې د الله تعالی یو لوی نعمت دی، الله سبحانه وتعالی فرمایي: [يَا بَنِي آدَمَ قَدْ أَنزَلْنَا عَلَيْكُمْ لِبَاسًا يُوَارِي سَوْءَاتِكُمْ وَرِيشًا...][1].

ژباړه: اې د آدم اولاده! یقیناً چې تاسو ته مې داسې لباس درولېږو چې بدن مو پټوي او د ښایست وسیله ده.

د مسلمانې خور لپاره د هر رنګ لباس اغوستل جایز دي په شرط ددې چې د حجاب شرایط پکې موجود وي، اسراف او شهرت او کبر پکې نه وي.

د حجاب شرطونه مو مخې د حجاب په احکامو کې ولوستل :

- ✓ دا چې ټول بدن به ورباندې پټ وي.
- ✓ دا چې تنګ او نری به نه وي .

فقه «اللباس و الزينة» لیکي:

د نارینه او ښځو لپاره د شفاف او نازک لباس چې عورت یې ورڅخه ښکاري په اتفاق د څلورو مذاهبو حنفیه ، مالکیه ، شافعیه او حنابله حرام دی[2].

او همداسې د ښځو لخوا د نازک، تنګ او چسپو جامو اغوستل، د سر ویښتان د اوښ د بوکام پشان جوړل ستره فتنه ده چې په اړه یې سخت وعید راغلی دی او دغو ښځو ته کاسیات عاریات ویلی شوې دي[3].

---

[1]- سوره الاعراف:۲۶.

[2]- جاء في فقه اللباس والزينة : حرُم على الرجال والنساء لبس اللِّباس الشَّفَّاف الذي يَصِف البَدَن مُبَيِّنًا للعَورة؛ وهذا باتفاق المذاهب الفقهية الأربعة: الحنفية، والمالكية، والشافعية، والحنابلة.

[3]- وَنِسَاءٌ كَاسِيَاتٌ عَارِيَاتٌ مُمِيلَاتٌ مَائِلَاتٌ، رُؤُوسُهُنَّ كَأَسْنِمَةِ الْبُخْتِ الْمَائِلَةِ.

- ✓ دا چې د نارینه سره مشابهت به پکې نه وي.
- ✓ اسراف به پکې نه وي:

د مود او فیشن پیروي او په لباس کې اسراف کول، یوه جوړه جامې لا زړې شوي نه وي هغه پرېږدي نورې جامې کوي او یا د جامې په اخیستلو کې له توسط څخه کار نه اخلي اسراف کوي .

په «المبسوط» کې راغلی : په جامو او لباس کې نه اسراف چې دی وربانديې مشهور شي او نه هم دومره کمی چې دومره خرابې وي چې خلک ګوته ورته ونیسي بلکې د کارونو غوره اوسط دی«وخیر الأمور أوسطها»[1] .

- ✓ شهرت او کبر به پکې نه وي:

د شهرت لپاره ډول ډول جامې اغوستل او د ناتوانه او فقیرانو خلکو د زړونو داغول .

په حدیث شریف راغلي :«مَنْ لَبِسَ ثَوْبَ شُهْرَةٍ فِي الدُّنْيَا أَلْبَسَهُ اللَّهُ ثَوْبَ مَذَلَّةٍ يَوْمَ الْقِيَامَةِ»[2] .

یعني : څوک چې په دنیا کې د شهرت لباس اغوندې الله تعالی به په قیامت کې د ذلت جامې ور واغندي .

مناوي رحمه الله وايي : د شهرت له جامې څخه مطلب هغه جامې دي چې کبر، غرر او افتخار وربانديې کوي او د نورو خلکو څخه خپل ځان لوړ ګڼي .

**د ښځو لپاره د پطلون اغستل :**

د ښځو لخوا د پطلون او نارینه بوټونو او نورو نارینه شیانو استعمال حرام دی ځکه د پطلون څخه د ښځې د بدن حجم څرګندیږي او بل دا چې د نارینه سره مشابهت دی .

«لَعَنَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ المُتَشَبِّهِينَ مِنَ الرِّجَالِ بِالنِّسَاءِ، وَالمُتَشَبِّهَاتِ مِنَ النِّسَاءِ بِالرِّجَالِ»[3] .

---

لَا يَدْخُلْنَ الْجَنَّةَ وَلَا يَجِدْنَ رِيحَهَا، وَإِنَّ رِيحَهَا لَيُوجَدُ مِنْ مَسِيرَةِ كَذَا وَكَذَا (رواه مسلم :٢١٢٨ ).

[1]- والمراد أن لا يلبس نهاية ما يكون من الحسن والجودة في الثياب على وجه يشار إليه بالأصابع ، أو يلبس نهاية ما يكون من الثياب الخَلِقِ – القديم البالي - على وجه يشار إليه بالأصابع , فإن أحدهما يرجع إلى
الإسراف والآخر يرجع إلى التقتير ، وخير الأمور أوسطها " انتهى (المبسوط:٢/٢٦٧ ).

[2]- رواه ابؤداود ٤٠٢٩ ، و النسائي ٥/٤٦٠ و ابن ماجه ٣٦٠٦ .

[3]- رواه البخاري ٥٨٨٥ .

ژباړه: رسول الله صلى الله عليه وسلم لعنت ويلى دى په هغه نارينه ؤ باندې چې د ښځو مشابهت کوي (يعنې د هغوی په شان شکل جوړوي او د هغوی په شان لباس اغوندي) او په هغو ښځو باندې هم لعنت ويلى چې هغه د نارينه مشابهت اختياروي يعنې دهغوی په شان جامې اغوندې او د هغوی په شان ځان جوړوي.

او فتاوی اللجنةالدائمة او فتاوی النسائية ليکي : د ښځو لپاره د پطلون اغوستل جواز نه لري که څه هم د ښځو پر وړاندې وي او يا يې د خاوند پر وړاندې وي ځکه چې دا د نارينه سره مشابهت کول دي.[1]

يعنې : د ښځې لپاره پطلون اغوښتل جايز نه دي که څه هم يوازې وي که څه هم د ښځو سره وي يا د خاوند پر وړاندې مګر دا چې د خاوند سره په قفل اتاق وي او ددې پرته جواز نلري ځکه چې ددې څخه د بدن حجم څرګنديږي.

**د ښځو لپاره د لوړو بوټونو اغوستل:**

د مسلمانې خور لپاره د لوړو بوټونو اغوستل جواز نه لري ځکه چې په دې کې د کافرو ښځو سره مشابهت دی، او په دې کې کبر او فخر دی، او تبرج يعنې بې حجابي ده، او په دې کې بدن ته خطر او ضرر دی ځکه چې د تګ پر مهال د بدن تعادل سم نه وي[2].

جاء في الموسوعة الفقهية الاسلامي ص:١٨٥-٢٧١:

حكم لبس الكعب العالي: لا ينبعي للمرأة لبس الكعب العالي لما فيه من تشبه بالكافرات، ولما فيه من الكبر و العجب، و لما فيها من التبرج المشين، و لما فيها من الخطر و الضرر على الجسم و الارحام بسبب عدم اعتدال الجسم أثناء المشي.

## څلورم بحث: د زيوراتو زينت او سينګار

**د ښځې د پاره د سرو او سپينو زرو د زېوراتو استعمال:**

د ښځو لپاره د زېوراتو استعمال د علماؤ په اجماع سره جائز دی.

---

[1]- و جاء في فتاوى اللجنة الدائمة: لا يجوز لها أن تلبس البنطلون، لما فيه من تشبه النسآء بالرجال (اللجنة الدائمة :١٠٢/١٧).
و في الفتاوى النسائية :وأما لبس المرأة للبنطلون فلا يجوز ولو كانت خالية و لو كانت أمام
النساء أو أمام زوجها، إلا في غرفة مغلقة مع زوجها فقط، فأما ما سوى ذلك فلا يجوز فإنه يبين تفاصيل البدن .
[2]

رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمايي:«حرم لباس الحرير و الذهب على ذكور امّتى و احل لاناثهم»[1].

ژباړه: د ابريشمو او سرو زرو استعمال زما د امت په سړيو حرام دی او ښځو لپاره حلال دی.

مگر دا ورته جايز نه دي چې خپلې ګاڼې نامحرمه نارينه وو ته ښکاره کړي.

په دليل د دغه آيت شريف: [وَلاَ يُبْدِينَ زِينَتَهُنَّ إِلاَّ مَا ظَهَرَ مِنْهَا][2].

ژباړه: او خپل سينګار دې نه ښکاره کوي پر ته له هغه چې خپله څرګند شي.

## د ښځو د پاره د پزې او غوږونو سوري کول جايز دي؟

د ښځو د پاره د زېوراتو اچولو د پاره د پزې او غوږونو سوري کول جايز دي.

د بخاري او مسلم حديث شريف دی:

ابن عباس رضى الله عنه روايت کوي: رسول الله صلى الله عليه وسلم د بلال رضى الله عنه سره د جومات څخه بهر شو او گمان يې وکړ چې ښځو به د هغه وعظ او ارشاد نه وي اوريدلی. نو هغوی ته يې وعظ وکړ او هغوی ته يې د صدقې ورکولو امر وکړ، ښځو د لښتيو او گوتيو په ايستلو شروع وکړه او بلال رضى الله عنه هغه په خپل لمن کې جمع کولې.

د فتاوی دارالعلوم ديوبند د شامي (باب حظر و اباحه ص: ۲۷) په حواله ليکي چې په څهار گل سره د ښځو سينګار کول جايز دي، يا د څهار گل يا ميخک لپاره د پوزې سوري کول جايز دي[3].

## د ښکلا او زينت عمليات (جراحي پلاستيکي):

د فقهې نړيوالې ټولنې (مجمع الفقه الاسلامي ) پخپله آتلسمه دوره کې چې په مازليا کې د پنځو ورځو لپاره جوړه شوې وه د پلاستيکي عملياتو په اړه داسې پريکړه کړې ده :

---

[1]- الترمذي: ۳۰۲/۱.
[2]- سوره النور:۳۱.
[3]- فتاوی دار العلوم ديوبند: ۷۵۵/۱.

د ضرورت پرته د ښکلا او زينت لپاره پلاستيکي عمليات لکه: د پلنې پوزې نري کول، د لويو شونډو کوچني کول، د وريځو عمليات د مخ د ګونځو ورکول او داسې نور حرام دي د الله تعالى په خلقت کې بدلون راوستل دي او داسې کسانو باندې د الله تعالى لعنت دى.

مګر د عيب له منځه وړلو او ضرورت په صورت کې جايز دي لکه:

الف : کوم اندام له خپلې دندې څخه لويدلى وي هغه خپل لومړي حالت ته ګرځول.

ب: د چاک شوې شونډې جراحي، د پورې زيات انحراف چې تنفسي ستونزه را منځته کړي.

ج : زياتې شوې ګوتې او غاښونه چې د تکليف سبب وي .

د : د کوم مرض او يا سوزيدو له امله د پوست جراحي يا د کوم مرض او سوزيدو له امله د تويو شويو ويښتانو کرل جايز دي .

نومړې فقهي ټولنه په اخر کې داسې وصيت کوي :

په روغتونو او طبيبانو باندې لازمه ده چې د الله تعالى څخه وويريږي او هغه عمليات چې حرام وي تر سره يې نه کړي .

په روغتونو او طبيبانو لازمه ده چې د طيب او په خاصه ټوګه د ښکلا عملياتو په اړه شرعي احکامو ته متوجه شي او يوازې د پيسو تر لاسه کول يې مطلب نه وي.

او هغه غاښونه چې کاږه وي، مات شوي وي، يا د يو غاښ شاته بل غاښ را ختلى وي د هغه درملنه او اصطلاح د عيب له منځه وړلو لپاره جايز ده او همدارنګه هغه غاښ چې د نورو غاښونو څخه اوږد وي نو د ښکلا لپاره نه بلکې د عيب له منځه وړلو لپاره يې کټ کول جايز دي[1].

مګر د عيب او ضرورت پرته د غاښونو په منځ کې فاصله جوړول او د غاښونو سيده کول حرام دي[2].

[1]- يجوز برد الاسنان اذا كانت بارزة أو مائلة أو مكسورة أو كانت أطول من التي بجانبها، لأن ذلک من باب ازالة العيب و ليس من طلب التحسين- طريق الى الله – يوسف بن عبدالله الشبيلي.

[2]- د ضرورت پرته د غاښونو سيده کول او سوان کول حرام دي او په داسې باندې د الله تعالى لعنت دى : «لعنَ اللَّه الْواشِماتِ ....، َالمُتَفَلِّجَاتِ لِلحُسْن، المُغَيِّراتِ خَلْقِ اللَّه.

## پنځم بحث :د فطرت سنت

فطرت سنت عبارت دي له: ختنه (سنت كول)، د نامه لاندې او تخرګونو د ويښتانو خريل، د بريتونو لنډول او د نوكانو پرې كول دي په دليل د دغه حديث شريف:«خَمْسٌ مِنْ الْفِطْرَةِ: الِاسْتِحْدَادُ وَ الْخِتَانُ وَقَصُّ الشَّارِبِ وَنَتْفُ الْإِبْطِ وَتَقْلِيمُ الْأَظْفَارِ»[1].

ژباړه: دا پنځه شيان د انسان د فطرت سنت دي:۱- ختنه ۲- د نامه لاندې ويښتو خريل ۳- دبريتو لنډول ۴- نوكونه پرې كول ۵- د تخرګونو د ويښتانو اخيستل .

د نوكانو په پرې كول كې پاكي او ښكلا ده، حال دا چې په پريښودلو كې يې د ځېرونكو حيواناتو او كافرانو سره مشابهت دی، همدارنګه د پلېتی ،چټلی او مكروبونو د جمع كيدلو سبب هم ګرځي او بيخونو ته يي د اوبو د رسيدلو مانع كرځي، له بده مرغه ځېنې مسلمانې ښځې د كافرو ښځو نه په پټو سترګو تقليد كړی او د دغه ديني سنتو سره د نه بلدتيا له امله د نوكانو د اوږده پريښودلو اقدام كوي.

داسې كول د سنتو خلاف عمل دی پيغمبر صلی الله عليه و سلم فرمايلي دي چې: «فمن رغب عن سنتی فليس منی»[2].

يعنی: څوک چې زما د سنتو څخه مخ اړوي هغه له ما څخه نه دی.

دوهم دا چې داسې كول د څهار پايانو او كافرانو سره مشابهت كول دي چې داسې كول حرام دي.

رسول الله صلی الله عليه وسلم فرمايي: «من تشبه بقوم فهو منهم» .

يعنی: څوک چې خپل ځان د كوم قوم سره تشبه كړي له هغوی سره به وشميرل شي.

نو داسې كول د مسلمانې ښځې د پاره مناسب كار نه دی او نه هم دا د فطرت سليمه غوښتنه ده بلكي د فطرت خلاف عمل دی.

همدا شان د تخرګ ويښتان او تر نامه لاندي ويښتانو لري كول د ښځو لپاره سنت دي لكه په پورته حديث شريف كې چې ذكر شول.

---

[1]- رواه البخاري-۵۸۸۹ و مسلم :۲۵۷.
[2]- حديث متفق عليه .

غوره دا ده چې په هر اونۍ کې خپل نوکان، د تخرګونو ویښتان او د شرمګاه ویښتان وخریل شي او که په هره اونۍ کې و نه خریل شي نو تر څلویښتو ورځو زیات پریښودل یې جایز نه دي.

د انس رضی الله عنه روایت دی چې وایي:«وقتَ لنا رسول الله صلی الله علیه وسلم في قص الشارب، وقلم الظفر، ونتف الإبط، وحلق العانة: ألا نترك شيئاً من ذلك أكثر من أربعين ليلة».

یعنې: پیغمبر صلی الله علیه وسلم مونږ ته د بریتونو لنډولو، نوکونو، د تخرګونو د ویښتانو خریل د نامه لاندې ویښتانو ویستلو په باره کې وخت تعین کړی ؤ چې د څلویښتو (۴۰) ورځو پس یو هم باقي نه شي.

**ضروري مسائل:**

**پوښتنه:** د تخرګونو او شرمګا د ویښتانو لرې کول د موی بر د کمیاوي مادې په وسیله جایز دي؟

هو باک نه لري ځکه د دغه ویښتانو د لرې کولو څخه مقصد د نظافت ساتل دي ، یعنې د ویښتانو د لرې کولو لپاره د اوسني کمیاوي درملو استعمال جایز دی[1].

**د حیض اونفاس** په موده کې د نوکانو لنډول او د تخرګونو، شرمګاه د ویښتانو خریل وبال لري او که ؟

نه هیڅ باک نه لري ځکه په دې اړه د منع هیڅ شرعي دلیل وجود نه لري[2].

[1]- فتاوى البلدالحرام: ۱۲۷/۵،۱۲۸.
[2]- شبكة الأسلامية مركز الفتاوي رقم الفتوى: ۱۵۹۰۵.

# پنځم فصل

## په اسلام کې د ښځو تعلیم

اسلام لومړی دین دی چې د ښځو د تعلیم آساس او بنسټ یې کېښود، کله چې اسلام مینځ ته راغی په نارینوو کې د ګوتو په شمیر تعلیم واله کسان موجود وو چې وروسته په اسلام کې تعلیم ته ډیره زیاته توجه وشوه، د اسلام نه مخکې په ښځو کې تعلیم نه وو، د لومړی ځل لپاره په اسلام کې د ښځو د تعلیم بنسټ بناء شو او د ښځو تعلیم او روزنې ته زیاته توجه وشوه، په دور نبوت کې په لسګونو تعلیم واله ښځې موجودې وې چې هغوی د دین په نشر کې پوره ونده او برخه اخستې ده، ددې ښځو له جملې څخه یوه ام المؤمنین حضرت عایشه رضی الله عنها وه هغې ته الله تعالی داسې اوچت علم او فهم ورکړی وو چې ډیرو صحابه کرامو به د هغې په نظر فتواوې ورکولې.

**خویندو او لورګانو ته د تعلیم ورکولو اهمیت:**

اسلام د لورګانو او خویندو په تربیت او تعلیم باندې ډیر اهتمام کړی دی ځکه چې سبا ورځ مور ګرځي او مور د ټولنې ستنه او د نسلونو د تربیت لومړۍ مدرسه ده.

جناب رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایلي:«من رُزق بناتٍ أو أَخَواتٍ فأحسن إليهنَّ كُنَّ له سِتراً من النار»[1] .

ژباړه: ژباړه: چا ته چې الله تعالی دوې لورګانې او یا دوې خویندې ورکړې وي او له هغوی سره نیک چلند او د هغوی دیني ترتیبت وکړي هغه لره به د دوزخ له اور څخه پرده وګرځي.

په نورو احادیثو کې د نیک او ښه سلوک بیان داسې شوی : دا چې د نارینه او ښځینه اولاد تر منځ فرق و نه کړي، ښه اسلامي تربیه ورکړي او د اسلامي شریعت ضروري علم ور زده کړي، د واده کیدو تر وخته پورې د هغوی سره ښه چلن وکړي نو د داسې کس لپاره به لونې او خویندې د دوزخ څخه د نجات وسیله ورته وګرځي.

[1] - حدیث متفق علیه .

**د « طلب العلم فريضة ....» مطلب كوم علم دی ؟**

په اسلامي شريعت کې د نارينه او ښځو د پاره د شريعت د ضروري احکامو زده کړه فرض ده، رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمايي: « طلب العلم فريضة على كلّ مسلمٍ ».

يعني: د علم طلب په هر مسلمان (نر او ښځه) فرض دی.

د پورته حديث څخه د شريعت ضروري علم مراد دی لکه: د خپل رب سبحانه و تعالى پيژندل او د خپل نبي محمد صلى الله عليه وسلم پيژندل او د طهارت،لمانځه، روژې، زکات او حج احکامو،اسلامي حجاب،ضروري معاملات، اسلامي اخلاق او آداب او د ګناهونو او حرامو پيژندل او داسې نور.

الموسوعة الفقهية ليکي:

په مور او پلار لازمه ده چې خپل اولاد (هلکانو او نجونو) ته د شريعت ضروري احکام ور زده کړي لکه:طهارت، لمونځ، روژه او نور او همدارنګه د حرامو شيانو زده کړه لکه: د زنا، لواطت، غلا، شراب، غيبت، بهتان او نور زده کړه وربانديې واجبه ده.

جاء فى الموسوعة الفقهية:

على الآباء والأمّهات تعليم أولادهم الصّغار الطّهارة والصّلاة والصّوم ونحوها، وتعليمهم تحريم الزّنى واللّواط والسَّرِقة، وشرب المُسكر والكِذب والغيبة وشبهها، وأنّهم بالبلوغ يدخلون في التّكليف.

او د غير شرعي علوم څخه کوم چې ضرورت دی لکه: د طب د نسايي او ولادي څانګه ځکه چې د سرې د پاره د ښځې ستر ليدل جايز نه دي مګر د سخت ضرورت په وخت، مګر دا علم معاصر فقهاء فرض کفايي بولي، په شرط ددې چې د هلکانو او نجونو تر مينځ اختلاط او کېدون نه وي د حجاب مراعات وي.

جاء فى الموسوعة الفقهية:

ومن العلوم غير الشّرعيّة ما يعتبر ضرورةً بالنّسبة للأنثى كطبّ النّساء حتّى لا يطّلع الرّجال على عورات النّساء. جاء في الفتاوى الهنديّة: امرأة أصابتها قرحة في موضعٍ لا يحلّ للرّجل أن

ينظر إليه، لا يحلّ أن ينظر إليها، لكن يعلّم امرأةً تداويها، فإن لم يجدوا امرأةً تداويها ولا امرأةً تتعلّم ذلك إذا علّمت، وخيف عليها البلاء أو الوجع أو الهلاك فإنّه يستر منها كلّ شيءٍ إلاّ موضع تلك القرحة، ثمّ يداويها الرّجل، ويغضّ بصره ما استطاع إلاّ عن ذلك الموضع.

**په اسلام کې د ښځو د تعليم شرايط او ضوابط :**

غوره دا ده چې ښځو ته ښځينه معلمه په يو کامل ښځينه او با حجابه چاپيريال کې درس ورکړي که ښځينه معلمه نه وي نو د نارينه د پاره د لاندې شرايطو په صورت کې ښځو ته تعليم ورکول جايز دي:

١- په جومات، کور يا مدارسو کې د نارينه او ښځو تر مينځ يو ځای درس ويل يا اختلاط حرام دی

امام بخاري رحمه الله د ښځو د تعليم په باره کې له رسول الله صلی الله عليه وسلم څخه دا حديث نقل کړی دی: عن أبي سعيد الخدري – رضي الله عنه – قالتِ النِّسَاءُ للنبيِّ صَلَّى اللهُ عليه وسلَّمَ: «غَلَبَنَا عَلَيْكَ الرِّجَالُ، فَاجْعَلْ لَنَا يَوْمًا مِن نَفْسِكَ، فَوَعَدَهُنَّ يَوْمًا لَقِيَهُنَّ فِيهِ، فَوَعَظَهُنَّ وأَمَرَهُنَّ، فَكانَ فِيما قَالَ لهنَّ: ما مِنْكُنَّ امْرَأَةٌ تُقَدِّمُ ثَلَاثَةً مِن ولَدِهَا، إلَّا كانَ لَهَا حِجَابًا مِنَ النَّارِ فَقالتِ امْرَأَةٌ: واثْنَتَيْنِ؟ فَقَالَ: واثْنَتَيْنِ »[1] (البخاري)

(ابو سعيد الخدري وايي: ښځو رسول الله صلی الله عليه وسلم ته وويل: سړي ستا سره مصروف دي (زمونږ لپاره) باقي وخت نه دی پاتې. مونږ د پاره داسې وخت او موقع وټاکه تر څو ستا په حضور کې حاضرې شو. رسول الله صلی الله عليه وسلم د هغوی د پاره يوه ورځ تعين کړه او په هغې (ورځ يې) هغوی ته وعظ و فرمايلو).

وجاء في فتاوى اللجنة الدائمة (١٢/١٥٦):

الاختلاط بين الرجال والنساء في المدارس أو غيرها من المنكرات العظيمة، والمفاسد الكبيرة في الدين والدنيا، فلا يجوز للمرأة أن تدرس أو تعمل في مكان مختلط بالرجال والنساء، ولا يجوز لوليها أن يأذن لها بذلك.

[1]- رواه البخاري.

يعني : د نارينه او ښځو تر مينځ په مدارسو او نورو ځايونو کې اختلاط او کېږون د دين او دنيا د پاره عظيم منکر او ستر فساد دی، د ښځې د پاره جايز نه ده چې په داسې ځای کې درس وواېي چې هلته نارينه او ښځې سره کډ وي، او د هغې د سرپرست د پاره جايز نده چې هغې ته اجازه ورکړي .

۲- نارينه معلم که ملاصاحب وي، قاري صاحب وي، معلم صاحب وي، په کور کې وي يا جومات کې بالغو ښځو ته به د پردې تر شا درس ورکوي او کوچني ماشومان او نجونو ته مستقيماً باک نه لري ځکه چې د فتنه ويره نشته.

لقوله تعالی: [وَإِذَا سَأَلْتُمُوهُنَّ مَتَاعًا فَاسْأَلُوهُنَّ مِن وَرَاء حِجَابٍ][1] .

ژباړه: که څه شی غواړي نو د پردي تر شا يې وغواړئ.

له ام سلمه رضی الله عنها نه روايت دی چې زه او ميمونه رضی الله عنها د رسول الله صلی الله عليه وسلم سره وو، چې په دې حال کې ابن ام مکتوم رضی الله عنه راغی دغه وخت د حجاب حکم نازل شوی وو. رسول الله صلی الله عليه وسلم وفرمايل: « احْتَجِبَا مِنْهُ » (له هغه څخه ستر وکړئ )، ومو ويل: ای رسول الله:آيا هغه ړوند سړی نه دی چې مونږ نه ويني او نه مو هم پيژني؟ پيغمبرصَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَآلِهِ وَسَلَّمَ وفرمايل:« أفَعَمْيَاوَانِ أنتُما؟ أَلَسْتُمَا تُبْصِرَانِهِ؟ » ( آيا تاسې دواړه هم ړندې ياست؟آيا تاسې هغه نه وينئ؟)[2] .

عائشه رضی الله عنها وايي : « كَانَ الرُّكْبَانُ يَمُرُّونَ بِنَا وَنَحْنُ مَعَ رَسُولِ اللَّهِ صلى الله عليه وسلم مُحْرِمَاتٌ فَإِذَا حَاذَوْا بِنَا سَدَلَتْ إِحْدَانَا جِلْبَابَهَا مِنْ رَأْسِهَا إِلَى وَجْهِهَا فَإِذَا جَاوَزُونَا كَشَفْنَاهُ »[3].

ژباړه:عايشه رضی الله عنها وايي: مونږ په سورليو د رسول الله صلی الله عليه وسلم سره د حج د سفر لپاره روان وو کله به چې سړي زمونږ له خوا څخه تيرېدل مونږ به مخ پټولو او کله به چې هغوی له مونږ څخه لرې شول نو مونږ به مخ لوڅولو.

نو ثابته شوه چې د نامحرمو څخه د مخ پټول په حجاب کې شامل دي، د حجاب حکم او د نامحرم حکم عام دی، په پير، حضرت، ملا، قاري، معلم پورې اړه نه لري.

---

[1]- سوره الاحزاب :۵۴.
[2]- أحمد (۲۹۶/۶)، و أبو داود (۴۱۱۲)، و الترمذي (۲۷۷۸)، و النسائی فی «الکبری»(۹۲۴۱)، و ابن حبان في «صحيحه»(۵۵۷۵).
[3]- رواه ابوداود: ۱۸۳۳ و ابن الماجه: ۲۹۳۵ و صحيحه ابن خزيمة: ۴/۲۰۳.

وجاء في فتاوى اللجنة الدائمة (١٥٦/١٢):

لا حرج في تعليم الرجل المَرأة من وراء حجاب في مدارس خاصة بالنساء، لا اختلاط فيها بين الطلاب والطالبات، ولا المعلم والمتعلمات.

يعني : په دې کې څه حرج نشته چې نارینه معلم د پردې تر شا خاص د ښځو په مدارسو کې درس ورکړي، داسې چې د نارینه او ښځینه زده کوونکو تر مینځ اختلاط (کېدون) نه وي او نه به هم د معلم او متعلمینو تر مینځ اختلاط وي .

ځنې نور مصلحتونه هم علماء کرامو ذکر کړی دي لکه:

٣- د امکان په صورت کې به نارینه معلم د لوړ سن لرونکي وي، واده شوی او تقوا داره سړی به وي.

٤- د درس ورکولو په جریان کې به د ضرورت په اندازه خبرې کوي.

٥- په خبرو کولو کې به نرمي نه وي (خبرې به په مینه ناکه او جذابه لهجه) نه وي. (و الله سبحانه وتعالی اعلم)

# شپږم فصل

## د خاوند پر ښځه او د ښځې پر خاوند څه حقوق دي ؟

**پر خاوند باندې د ښځې حقوق:**

د ښځې پر خاوند باندې مالي حقوق دي لکه مهر، نفقه، استوګنځۍ او نور غیر مالي حقوق لکه عدل، ښه سلوک او ضرر نه رسول او داسې نور .........

**اول- مالي حقوق**

د ښځې په خاوند باندې مالي حقوق دي لکه مهر، نفقه او د استوګنې ځای.

**الف) مهر:**

مهر هغه مال دی چې خاوند یې د عقد نکاح په وخت خپلې ښځې ته ورکوي او دا د ښځې واجب حق دی پر خپل خاوند باندې، الله تعالی فرمايي:[وَآتُواْ النِّسَاءَ صَدُقَاتِهِنَّ نِحْلَةً][1] .

ژباړه: او ښځو ته د دوی مهر په خوښۍ او رضا ورکړئ.

تفسیر القرطبي او الطبري په شأن نزول د دغه آیت کریمه کې دوه مشهور روایتونه ذکر کړي دي:

اول دا چې : دا خطاب دی د ښځو هغو پلورونو او اولیاؤ ته چې دوی به د ښځو مهر اخیست او ښځو ته به یې نه ورکولو نو دوی له دغه کار څخه منع شول.

دوهم دا چې : د جاهلیت په زمانه کې داسې د بدل نکاح مروجه وه چې یو کس به خپله لور یا خور بل کس ته ورکوله او د هغې په بدل کې به یې د هغه لور یا خور په نکاح کوله او د دوی په منځ کې به څه مهر نه وو بلکې مهر همدا بدل ګڼل کیده نو د دغه کار څخه منع شوې ده .

که د نکاح د عقد په وخت کې مهر نه وي ټاکل شوی نو بیا مهر مثل ادا کیږي.

**ب) نفقه :**

د اسلامي امت د علماؤ په دې باندې اتفاق دی چې د ښځې نفقه پر میړه باندې فرض ده، ځکه چې د نفقې پیدا کولو د پاره د کور څخه د باندې وتل د نارینه مسئولیت دی نه د ښځې او میړه

[1]- سوره النسآء :۴ .

به خپلې ښځې ته د اقتصادي توان موافق نفقه برابروي، الله سبحانه وتعالى فرمايي:[وَعلَى الْمَوْلُودِ لَهُ رِزْقُهُنَّ وَكِسْوَتُهُنَّ بِالْمَعْرُوفِ][1] .

ژباړه: او د ماشوم پلار به هغوی (مور او ماشوم) ته په ښه توګه خواړه او جامې ورکوي.

او الله سبحانه وتعالى فرمايي: [لِيُنفِقْ ذُو سَعَةٍ مِّن سَعَتِهِ وَمَن قُدِرَ عَلَيْهِ رِزْقُهُ فَلْيُنفِقْ مِمَّا آتَاهُ اللَّهُ][2] .

ژباړه: توانا خاوند ښايي د خپل توان په اندازه نفقه ورکړي او په هر چا چې روزي تنګه شوه، نو د هغه څه نه چې الله (جل جلا له) ورکړي دي نفقه دي وکړي.

په سنتو کې راغلي دي:

وعن جابر: «أن رسول الله صلى الله عليه وسلم قال في خطبة حجة الوداع: ...... ولَهُنَّ عليكم رِزقُهن وكِسَوتُهُن بالمعروف»[3]

يعنې: جابر رضى الله عنه روايت كوي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم په حجة الوداع كې وفرمايل: ......... او د هغوی پر تاسې باندې دا حق دی چې هغوی ته به په ښه شان نفقه او د استوګنې ځای برابروئ.

خپلې ښځې او اولاد ته د نفقې برابرولو د فضيلت په اړه جناب نبی كريم صلى الله عليه وسلم فرمايي:

«دِينَارٌ أنْفَقْتَهُ في سَبيلِ اللهِ، وَدِينار أنْفَقْتَهُ في رَقَبَةٍ، وَدِينارٌ تَصَدَّقْتَ بِهِ عَلَى مِسْكِينٍ، وَدِينَارٌ أنْفَقْتَهُ عَلَى أهْلِكَ، أعْظَمُهَا أجْراً الَّذِي أنْفَقْتَهُ عَلَى أهْلِكَ»[4] .

ژباړه: يو هغه دينار دی چې د الله (جل جلا له) په لار كې صدقه شي، بل هغه دينار دی چې غلام باندې مصرف شي، او بل هغه دينار دی چې په مسكين باندې صدقه شي، او بل هغه دينار چې پخپل اهل خرڅ شي، تر ټولو د هغه اجر زيات دی كوم چې د خپل اهل د پاره نفقه او خرڅ شي.

[1]- سوره البقره :۲۳۳.
[2]- سوره الطلاق:۷ .
[3]- رواه مسلم : ۱۲۱۸.
[4]- روه مسلم .

په پورته حدیث شریف کې د الله (جل جلا له) په لاره کې خرڅ، دغلام د آزادولو لپاره خرڅ او فقیرانو سره د کومک لپاره خرڅ کې غوره خرڅ د خپل اهل عیال لپاره خرڅ یا د نفقې د پاره مصرف ښودلی شوی دی.

بل حدیث کې راغلي: «إِذَا أَنْفَقَ الرَّجُلُ عَلَى أَهْلِهِ يَحْتَسِبُهَا فَهُوَ لَهُ صَدَقَةٌ»[1].

ژباړه: که څوک د ثواب په نیت پخپل اهل او عیال خرڅ وکړي د هغه دا نفقه کول صدقه شمیرل کیږي.

**ج) مسکن (استوګنې ځای) :**

خاوند به خپلې ښځې ته د خپل اقتصادي توان موافق د استوګنې ځای برابروي چې حد اقل یې د ځانته اطاق برابرول دي، الله (جل جلا له) فرمايي: [أَسْكِنُوهُنَّ مِنْ حَيْثُ سَكَنتُم مِّن وُجْدِكُمْ وَلاَ تُضَارُّوهُنَّ][2].

یعنې: دوی په هغه ځای کې چې تاسې پخپله اوسیږئ د خپل وس په اندازئ واوسوئ (د استوګنې ځای ور ته برابر کړئ) او دوی ته ضرر مه رسوئ.

**۲ -غیر مالي حقوق**

د ښځې پر خاوند باندې غیر مالي حقوق لکه: د ښځو تر مینځ عدل، ښه سلوک او داسې نور .

**الف) د ښځو تر مینځ د عدل ساتل:**

که د شرایطو برابریدو په صورت کې کوم کس دوهم واده وکړي نو په نفقه، سلوک او مسکن کې به د هغوی تر مینځ عدل کوي.

**ب) ښه سلوک:**

خاوند به د خپلې بی بی سره تر خپله وسه نیک سلوک کوي او د هغې پر وړاندې به مهربانه چلند کوي قرآنکریم د میرمنې سره د ښه سلوک کولو امر کړی دی:

[وَعَاشِرُوهُنَّ بِالْمَعْرُوفِ فَإِن كَرِهْتُمُوهُنَّ فَعَسَى أَن تَكْرَهُواْ شَيْئًا وَيَجْعَلَ اللّهُ فِيهِ خَيْرًا كَثِيرًا][1] (النساء ۱۹)

---

[1]- رواه البخاري:۵۵.

[2]- سوره الطلاق:۶ .

ژباړه:او له هغی سره په ښه طریقه ژوند تیر کړئ، بیا که هغه ستاسی (په څه وجه) خوښی نه وي نو کیدای شي چې یو شی ستا خوښ نه وي خو الله پاک په هغه کی (ستاسو) لپاره ډیره څه ښیګڼه ایښی وي.

نو یو انسان خو به خامخا یوه خالیګاه یا څه نیمګړتیا لري مثلاً که کومه ښځه په رنګ کې کمزورې وي نو کیدای شي بل اړخ ته یوه ډیره دینداره او نیک خویه وي چه د خپل خاوند د دنیا او آخرت د نیکبختۍ سبب وګرځي.

رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمايي:« أَكْمَلُ الْمُؤمِنِينَ إِيمَاناً أَحسَنُهُم خُلُقا، وخيارُكُم خِيَارُكُمْ لِنِسَائِهِمْ »[2]

ژباړه: د ایمان په اعتبار سره ستاسو کښې کامل ایمان واله هغه څوک دی چه د هغه اخلاق اوخوی ښه وي او تاسی کې بهترین اوغوره هغه دی چه د خپلی ښځی سره یی سلوک ښه وي.

**ج) ښځې ته د ضررنه رسول :**

دا د اسلام اصل دی چې هیڅ څوک به چا ته ضرر نه رسوي رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمايي:«لاضرر و لا ضرار فی الاسلام» (رواه ابن ماجه).

یعنې: په اسلام کې ځان او بل ته ضرر رسول نشته.

ښځې ته به بدني، لفظي ضرر نه رسوي او د ښځې خپلوانو سره به داسې چلن نه کوي چې دا ورباندې وځوریږي بلکي نیک چلن به کوي.

د خاوند باید دې ټکې ته پام وي چې د ښځې د پاره پلارګنۍ خاص اهمیت لري او د ښځې د داړ، تسل او څو ورځو تیرولو همدا یوه دروازه ده. پام کوه دا دروازه د هغې پر مخ و نه تړې! پام کوه د هغوی سره بد چلن ونه کړي څو د ښځې د ځور او خفګان سبب شي.

په هغه صورت کې چې خدای مه کړه ښځه بې لاری ته بدې ووهي نو په ځنو حالاتو کې میړه چې د ښځې مشر او مسئول بلل کیږي د هغې د اصلاح د پاره څه لږ بدني تأدیب کولای شي.

---

[1]- سوره النسآء :۱۹ .
[2]- رواه الترمذي: ۱۱۶۲، مشكاة المصابيح: ۳۲۰۰.

عن جابر بن عبد الله قال: قال صلى الله عليه وسلم في حجة الوداع: تَّقوا اللهَ في النساءِ؛ فإنَّكم أخذتُموهنَّ بأمانةِ الله، واستحلَلْتُم فروجَهنَّ بكلمةِ الله، وإنَّ لكم عليهنَّ ألَّا يُوطِئْنَ فُرُشَكم أحَدا تكرهونَه، فإنْ فعَلْنَ ذلك فاضرِبوهنَّ ضربًا غيرَ مُبَرِّحٍ، ولهنَّ عليكم رِزقُهنَّ وكِسوتُهنَّ بالمعروفِ » [1].

ژباړه: جابر رضی الله عنه وايي رسول الله صلی الله علیه وسلم په حجة الوداع وفرمايل: د ښځو په باره کې له الله (جل جلا له) څخه وويرېږئ تاسې هغوی د الله (جل جلا له) په امان اخيسې دي او تاسې ته د هغوی شرمګا د الله (جل جلا له) په کلمه حلال شوي او د تاسې په هغوی باندې دا حقونه دي چې هغوی به د تاسې فرشونه داسې چا ته نه غړوي چې تاسې يې بد ګڼئ (کوم څوک چې د تاسې خوښ نه وي هغه به بې اجازې کور ته نه ننباسي او نه به د هغوی سره ناسته ولاړه کوي) که يې داسې وکړل نو هغوی ووهئ لږ وهل چې زخم کونکي نه وي او همدارنګه د هغوی پر تاسې باندې دا حق دی چې هغوی ته به په ښه شان نفقه او د استوګنې ځای برابروئ.

**په ښځه باندې د خاوند حقوق :**

**الف) د میړه اطاعت کول:**

الله (جل جلا له) نر پر ښځه باندې مشر او رئیس مقرر کړی ځکه چې د خپل اهل او عیال د پاره مالي مصارف پر غاړه لري د نارینه د مشرۍ او ریاست حکمتونه مخکې بیان شول.

الله جل جلا له فرمايي:[الرِّجَالُ قَوَّامُونَ عَلَى النِّسَاء بِمَا فَضَّلَ اللّهُ بَعْضَهُمْ عَلَى بَعْضٍ وَبِمَا أَنفَقُواْ مِنْ أَمْوَالِهِمْ] [2].

ژباړه: سړي پر ښځو حاکمان دي له دې کبله چې الله (جل جلا له) ځنې د دوی ته یر ځینو نورو افضلیت او غوراوی ورکړی دی او له دې امله چې نارینه (د ښځو لپاره) خپله شتمني لګوي.

رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمايي: « خَيْرُ النِّسَاءِ الَّتِي إِذَا نَظَرْتَ إِلَيْهَا سَرَّتْكَ، وَإِذَا أَمَرْتَهَا أَطَاعَتْكَ، وَإِذَا غِبْتَ عَنْهَا حَفِظَتْكَ فِي مَالِكَ وَنَفْسِهَا» [1].

---

[1]- رواه المسلم: ۱۲۱۸.
[2]- سوره النساء:۳۴.

ژباړه: د ښځو نیکه او ښه ښځه هغه ده چې کله هغې ته ګورې تا خوشحاله کړي او کله چې هغې ته د څه امر وکړې هغه اطاعت کوي او کله چې ته غایب وي هغه ستا د کور او ځان ساتنه کوي.

پیغمبر صلي الله علیه وسلم فرمايي: «إِذَا صَلَّتْ المَرأةُ خَمسَها، و صَامَتْ شَهرها، و حَفِظَتْ فَرجَها، و أطَاعَتْ زوجها، قِيلَ لَهَا ادخُلي الجَنَّةَ من أيِّ أبوابها شِئْتِ»[۲].

ژباړه: کله چې ښځه پنځه وخته لمونځ وکړي، د رمضان روژه ونیسي د شرمګاه ساتنه وکړي او د میړه اطاعت وکړي هغې ته ویل کیږي له هرې دروازې دې خوښه وي جنت ته داخله شه.

**ب) د شهوت پوره کول:**

د نکاح یو هدف دا دی چې نر او ښځه په مشروع ډول یو له بل څخه خپل شهوت پوره کړي، که خاوند له خپلې ښځې څخه شهوت پوره کول و غواړي نو ښځه به له ضرورت پرته د هغه څخه مخ نه اړوي، ضرورت لکه مرض چې هغې ته تکلیف رسوي، حیض، نفاس، احرام او روژه.

رسول الله صلى الله علیه وسلم فرمايلي:« ذَا دَعَا الرَّجُلُ زَوْجتَهُ لِحَاجتِهِ فَلْتَأْتِهِ وإِنْ كَانَتْ عَلَى التَّنُّور »[۳].

ژباړه: کله چه خاوند خپله ښځه د خواهش پوره کولو لپاره را وغواړي نوهغه لره راتلل پکار دي اګر که د تنور (ډوډی پخولو په کار مصروفه وي).

همدارنګه رسول الله صلى الله علیه وسلم فرمايي:« إِذَا دَعَا الرَّجُلُ امْرَأَتَهُ إلى فِرَاشِهِ فأبَتْ فَبَاتَ غَضْبَانَ عَلَيْهَا لَعَنَتْهَا المَلَائِكَةُ حتَّى تُصْبِحَ »[٤].

ژباړه: کله چې میړه خپله ښځه د کورواله (جماع) د پاره و بولي او هغه ور نه شي او خاوند په غصه کې شپه سبا کړي، ملائکي تر سبا پورې پر هغې باندې لعنت وايي.

---

[۱]- رواه الطبراني – راوي عبدالله بن سلام.
[۲]- صحيح الجامع باسناد صحيح.
[۳]- رواه الترمذي: ۱۱۶۰و صحيح الترغيب: ۱۹۴۶.
[٤]- رواه البخاري :۳۰۶۵ ومسلم : ۱۴۳۶.

**ج) د خاوند د اجازې پرته به بل څوک کورته نه ننباسي :**

أبي هريرة رضي الله عنه وايي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمايلي :« لا تَصُمِ الْمَرْأَةُ وبَعْلُها شاهِدٌ إلَّا بإذْنِهِ، ولا تَأْذَنْ في بَيْتِهِ وهو شاهِدٌ إلَّا بإذْنِهِ»[1].

ژباړه: د ښځې د پاره رواه نه ده چې خاوند يې په كور كې وي او د خاوند د اجازې پرته نفلي روژه ونيسي، همدارنگه د ښځې د پاره جايز نه ده چې د خاوند د اجازې پرته څوک كور ته ننباسي.

**د) د خاوند د اجازې پرته به له كورنه وځي:**

عبدالله بن مسعود رضي الله عنه له رسول الله صلى الله عليه و سلم نه روايت كوي چه فرمايي: إِنَّ الْمَرْأَةَ عَوْرَةٌ ، فَإِذَا خَرَجَتِ اسْتَشْرَفَهَا الشَّيْطَانُ ، وَأَقْرَبُ مَا تَكُونُ مِنْ وَجْهِ رَبِّهَا وَهِيَ فِي قَعْرِ بَيْتِهَا » (صحيح الترمذي وابن خزيمة، وابن حبان).

ژباړه: ښځه عورت ده، او كله چې د كور څخه بيرون وځي شيطان هغې ته زينت او ښايست وركوي، او الله تعالى ته د نږدې كيدو تر ټولو غوره ځاى كور كې پاتې كيدل دي.

**هـ – التأديب:**

څرنگه چې نر د كور مشر دى نو د خپل اهل عيال مسئول دى. خپل اهل عيال ته به په نيكو كارونو امر كوئ او له بدو كارونو به يې منع كوي.

لقوله سبحانه و تعالى: [وَأْمُرْ أَهْلَكَ بِالصَّلاَةِ وَاصْطَبِرْ عَلَيْهَا][2] .

ژباړه:اهل ته مو په لمانځه كولو امر كوه او خپله هم پرې كلك اوسه.

وقوله سبحانه و تعالى: [يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا قُوا أَنفُسَكُمْ وَأَهْلِيكُمْ نَارًا وَقُودُهَا النَّاسُ وَالْحِجَارَةُ][3].

ژباړه: اى مؤمنانو! خپل ځانونه او خپل اهل عيال له هغه اور څخه چې خس يې خلك او تيږې دي وساتئ.

رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمايي:«كُلُّكُمْ رَاعٍ وَكُلُّكُمْ مَسْئُولٌ عَنْ رَعِيَّتِهِ، الإِمَامُ رَاعٍ وَمَسْئُولٌ عَنْ رَعِيَّتِهِ، وَالرَّجُلُ رَاعٍ فِي أَهْلِهِ وَهُوَ مَسْئُولٌ عَنْ رَعِيَّتِهِ، وَالْمَرْأَةُ رَاعِيَةٌ فِي بَيْتِ زَوْجِهَا وَمَسْئُولَةٌ عَنْ رَعِيَّتِهَا، وَالْخَادِمُ رَاعٍ فِي مَالِ سَيِّدِهِ وَمَسْئُولٌ عَنْ رَعِيَّتِهِ»[1]. (بخارى:۸۵۳)

[1]- رواه البخاري :۴۸۹۹ ومسلم :۱۰۲۶.
[2]- سوره طه :
[3]- سوره التحريم:۶ .

ژباړه: هر یو د تاسې راعی (شپون) دی او هر یو د تاسې د خپل رعیت (لاس لاندې کسانو) په برخه کې مسئول دی (د رعیت په اړه به له ده څخه پوښتنه کیږي). د ټولنې رهبر د خپل رعیت شپون او د خپل رعیت مسئول دی، سړی د خپل کور د اهل مسئول دی، ښځه د میړه په کور کې د خپل اولاد شپنه او مسئوله ده، خادم د مالک په مال کې شپون دی او په دغه باره کې مسئول دی.

که ښځه یا اولاد خدای مه کړه بې لارې ته مخ کړي نو د کور مشر ته دا جایزه ده چې هغوی ته بدني تأدیب ور کړي.

لقوله سبحانه و تعالی:[وَاللاَّتِي تَخَافُونَ نُشُوزَهُنَّ فَعِظُوهُنَّ وَاهْجُرُوهُنَّ فِي الْمَضَاجِعِ وَاضْرِبُوهُنَّ فَإِنْ أَطَعْنَكُمْ فَلاَ تَبْغُواْ عَلَيْهِنَّ سَبِيلاً إِنَّ اللّهَ كَانَ عَلِيًّا كَبِيرًا][2].

ژباړه: او هغه ښځې چې د هغوی د بدخويۍ څخه وېرېږئ نو (لومړی) دوی ته نصيحت وکړئ او که (په نصيحت سمې نه شوې) د خوب ځای یې جلا کړئ (او که په دې هم سمې نه شوې) و یې وهئ نو که غاړه یې کیښوده نو بیا پرې (د زیان رسولو لپاره) هسې حیلې او بهانې ورته مه لټوئ باور وکړئ چې الله پاک لوړ او لوی دی.

دا د میړه او کور د مشر مسئولیت دی چې خپل اهل عیال ته د دین ضروري احکام وښیي او همدارنګه هغوی ته په نیکو کارونو امر وکړي او له بدو کارونو یې منع کړي[3].

(د احنافو رحمهم الله په نزد بدني تأدیب په څلورو ځایونو کې جایز دی: کله چې میړه د ښځې د زینت اراده ولري او هغه زینت او د ځان ښایسته کول ترک کړي، د خواهش پوره کول بلنه ورکړي دا هغه ترک کړي په داسې حال چې هغه پاکه وي، لمونځ نه کوي، او د خاوند د اجازې بغیر له کور څخه وځي)[4]

---

[1] -

[2] - سوره النساء/۳۴.

[3] - تفسير ابن كثير: ۳۹۲/۴.

[4] - وقد ذكر الحنفية أربعة مواضع يجوز فيها للزوج تأديب زوجته بالضرب، منها: ترك الزينة إذا أراد الزينة، ومنها: ترك الإجابة إذا دعاها إلى الفراش وهي طاهرة، ومنها: ترك الصلاة، ومنها: الخروج من البيت بغير إذنه.

# اووم فصل

## د مسلمانې کورنۍ د نیکمرغه ژوند بنسټونه

ډیر خلک خپله نیکمرغي او روحي او جسمي هوسایني او آرامۍ غواړي او د بدمرغۍ او ستونزو له لاملونو او عواملو څخه، په تېره په کور او کورنۍ کې له جنجالونو څخه تښتي.

خو مونږ باید پوه شو چې دغه موارد هله تحقق مومي چې مونږ د الله په دین باندې کلکې منګولې و نیښلوو د اسلامي شریعت احکام وپېژنو تر څو یو د بل د حقوقو ساتنه او درناوی وکړو.

**د نیکمرغه کورنۍ بنسټونه:**

**لومړی بنسیټ: د خاوند او میرمنې تقوا:**

د نیکمرغه کورنۍ لومړی بنسټ پر الله تعالی کلک ایمان لرل او د هغه څخه وېره لرل او تقوی اختیارل دي چې کله والدین د تقوا او دینداری لرونکي وي د هغوی پر اولاد باندې هم پوره اثر کوي.

کله چې هر مسلمان او مسلمانه بی بی او هر کورنۍ تقوا اختیار کړي الله (جل جلا له) هغوی ته د مشکلات او د ژوند له ستونزو څخه د وتلو لارې برابروي د هغوی ژوند نیکمرغه او رزق او نفقه یې پراخه ګرځوي.

لقول الله سبحانه وتعالی:[ وَمَن يَتَّقِ اللَّهَ يَجْعَل لَّهُ مَخْرَجًا * وَيَرْزُقْهُ مِنْ حَيْثُ لاَ يَحْتَسِبُ وَمَن يَتَوَكَّلْ عَلَى اللَّهِ فَهُوَ حَسْبُهُ][1]

ژباړه: او څوک چې له الله نه ووېرېږي نو الله به ورته د ستونزو څخه د وتلو لاره پیدا کړي، او په داسې توګه به روزي ورکړي چې دی ګمان هم نه کوي او څوک چې پر الله توکل وکړي نو الله د ده د پاره کافي دی.

---

[1]- سوره الطلاق: ۲-۳.

**دوهم بنسيټ: د کورڅخه د شيطاني لارو مخنيوی کول:**

شيطان هر وخت کوښښ کوي چې د خاوند او د هغه د بی بی تر مينځ اختلافات را مينځ ته کړي د دوی په ژوند کې ستونزې، يو له بله کرکه او نفرت او اختلافات را مينځته کړي.

شيطان پخپلو ټولو شيطاني لشکرو کې هغه ته ډير شاباش او آفرين ورکوي کوم چې د خاوند او د هغه د ميرمنې تر منځ يې اختلاف را منځته کړی وي.

د شيطان څخه د پناه غوښتلو لپاره صحيح مسنونه اذکار دي چې بايد مسلمان په هغه باندې هميشه والی وکړي لکه: د سهار او ماښام اذکار، د خوب اذکار، کور ته د ننوتلو او وتلو اذکار، د خوراک او څښاک او نور مسنونه اذکار او د قرآنکريم تلاوت په خاصه توګه د بقرې سورت ورستي دوه آيتونه .

او له کور څخه د مجسمو، تصويرونو او موسيقۍ لرې کول.

**دريم بنسيټ د زوجينو حقوق پيژندل:**

خاوند او ميرمنې دواړو ته په کار ده تر څو يو د بل حقوق کوم چې اسلامي شريعت ټاکلي دي و پيژنې تر څو ښځه د خپل خاوند په حقونو او خاوند د خپلې ميرمنې پر حقونو تېری و نه کړي.

د زوجينو حقونه مو مخکې بيان کړل .

**څلورم بنسيټ، ښه سلوک او د تېريدنې او زغم څخه کار اخيستل:**

په ژوند کې مشکلات او ستونزې خامخا پيښيږي او هيڅ انسان له غلطۍ او تيروتلو خالي نه دی، خاوند او د هغه بی بی به يو د بل سره د ښه سلوک او ښه ژوند تيرولو کوښښ کوي او يو د بل غلطۍ او تيروتنې به په صبر او حوصله زغمي.

په خاصه ټوګه خاوند به له خپلې بی بی سره ښه سلوک کوي

[وَعَاشِرُوهُنَّ بِالْمَعْرُوفِ فَإِن كَرِهْتُمُوهُنَّ فَعَسَى أَن تَكْرَهُواْ شَيْئًا وَيَجْعَلَ اللّهُ فِيهِ خَيْرًا كَثِيرًا][1].

---

[1]- سوره النساء: ۱۹.

((اوله هغی سره په ښه طریقه ژوند تیر کړئ، بیا که هغه ستاسې (په څه وجه) خوښې نه وي نو کیدای شي چې یو شی ستا خوښ نه وي خو الله پاک په هغه کی (ستاسو) لپاره ډیره څه ښیګڼه ایښی وي)).

**پنځم بنسیټ، الفت او محبت:**

نیکمرغه کورنۍ او د ښه ژوند تیرولو بل بنسیټ د خاوند او د هغه د بی بی تر مینځ الفت او محبت دی چې دا الفت او محبت د اولاد د ښې تربيې د پاره هم ښه فرصت برابروي.

الله پاک خپلو بندګانو ته د احسان په توګه فرمايي: [وَمِنْ آيَاتِهِ أَنْ خَلَقَ لَكُم مِّنْ أَنفُسِكُمْ أَزْوَاجًا لِّتَسْكُنُوا إِلَيْهَا وَجَعَلَ بَيْنَكُم مَّوَدَّةً وَرَحْمَةً إِنَّ فِي ذَلِكَ لَآيَاتٍ لِّقَوْمٍ يَتَفَكَّرُونَ][1].

ژباړه: او له نښو نه يې يوه دا هم ده چې له ستاسې نه يې ستاسې جوړه پيدا کړه چې آرام ورسره وکړئ او ستاسې په مينځ کې يې مينه او خواخوږي پيدا کړی ده. په رښتيا چې په دې کې د هغه قوم لپاره چې فکر کوي ډيرې لويې نښې دي.

او الله (جل جلا له) فرمايي چې تاسې مې يو د بل د پاره سکون او آرام وګرځولئ:

[هُنَّ لِبَاسٌ لَّكُمْ وَأَنتُمْ لِبَاسٌ لَّهُنَّ][2].

ژباړه: (ښځې) ستاسې لباس او تاسې د هغوی لباس ياست.

**شپږم بنسیټ، د میړه او میرمنې د اختلافاتو د اوارۍ حل:**

د ښځې او ميړه تر مينځ حتماً څه اختلافات راځي داسې کور نشته چې په هغه کې به څه اختلافات را نشي، ددې ټولو اختلافاتو او ستونزو سرچينه په دېن کې لږ معلومات، د شريعت له احکامو نه خبريدل د ناوړه دودونو او غلطو افکارو پيروي کول وي، اسلامي شريعت د حل د لومړی لارې د پاره دا سپارښتنه کوي چې دواړه لورې به د حوصلې او تېريدو څخه کار اخلي .

الله تعالی فرمايي : [وَلَمَن صَبَرَ وَغَفَرَ إِنَّ ذَلِكَ لَمِنْ عَزْمِ الْأُمُورِ][3].

ژباړه: او هغه څوک چې زغم يې وکړ او بخښنه يې وکړه بې شکه دغه (چلند او سلوک) له ټينګو کارونو څخه دی

---

[1]- سوره الروم :۲۱.
[2]- سوره البقره: ۱۸۷.
[3]- سوره الشوري: ۴۳.

د مسلمان د پاره جایز نه ده چې د بل مسلمان سره د دریو ورځو نه زیات ملاقات او خبرې ترک کړي، رسول الله صلی الله علیه وسلم. فرمايي: «و لا يحل لمسلم ان يهجر اخاه فوق ثلاث»[1].

**د حل دوهمه لاره:**

که په صبر او زغم مشکلات حل نشي او ښځه په ښکاره توګه بې لاري ته بدېږ ووهي نو په دې صورت کې خاوند حاکم او مسئول دی د اصلاح لپاره به لومړی د هغې څخه خپله بستره جلا کړي که په دې سره اصلاح نشي نو د اصلاح لپاره بدني تأديب چې کم وي اجازت هم شته.

**دریمه مرحله:** بیا که په دې هم اصلاح را نشي او د سختو اختلافاتو ویره وي نو قرآنکریم ددې اختلافاتو د حل لاره داسې ښودلې ده:

[وَإِنْ خِفْتُمْ شِقَاقَ بَيْنِهِمَا فَابْعَثُوا حَكَمًا مِنْ أَهْلِهِ وَحَكَمًا مِنْ أَهْلِهَا إِنْ يُرِيدَا إِصْلَاحًا يُوَفِّقِ اللَّهُ بَيْنَهُمَا إِنَّ اللَّهَ كَانَ عَلِيمًا خَبِيرًا][2].

ژباړه: که په تاسې کې د سختو اختلافات ویره وي (نو دهغه مخنوی دا دی) چه ولیږئ یو د اصلاح کس د خاوند د طرف نه او یو د اصلاح کس د ښځې له طرفه که دا دواړه اصلاح غواړي (یعنی د فیصلی کولو اهلیت ولري) نو الله تعالی به په دواړو کې ضرور د موافقت توفیق پیدا کړي الله تعالی علیم او خبیر دی.

**څلورمه مرحله:** په آخر که په دې هم مشکل حل نشي ورستی لاره طلاق (د نکاح فسخه) کول دي. و الله سبحانه وتعالی اعلم

**د خاوند او ښځې د نیکمرغه ژوند څو قاعدې:**

**لومړی قاعده:**

د خاوند او ښځې تر مینځ به ښه علاقه او محبت هغه مهال مینځ ته راځي چې کله د دوی دواړو علاقه له الله پاک سره سمه وي.

ځکه د چا چې محبت او علاقه له الله پاک سره ښه وي (د هغه په اوامرو عمل کوي او له حرامو امورو ځان ساتي) نو داسې بنده د الله تعالی مقبول او خوښ بنده ګرځي او څوک چې د

---

[1]- حدیث متفق علیه.
[2]- سوره النساء :۳۵.

الله تعالی خوښ شول هغه د نورو کسانو په زړونو کې هم خوښ ګرځوي يعنې چا چې د الله تعالی سره مينه اختيار کړه الله تعالی به د خپلو بنده ګانو په زړونو کې د ده مينه ځای کړي ځکه د حديث شريف مفهوم دی چې څوک د الله تعالی محبوب جوړ شي نو دی به خلکو ته محبوب وي.

په زړونو کې د مينې او محبت اچول د الله سبحانه وتعالی په اختيار کې دي:

الله پاک فرمايي :[وألف بين قلوبهم لو انفقت مافي الارض جميعا ماألفت بين قلوبهم ولكن الله ألف بينهم إنه عزيز حكيم][١].

ژباړه: او الفت او محبت يې واچولو په زړونو د (مؤمنانو) کې، که لګولي وای تا څه چې د ځمکې پر مخ دي نو نه دې شوای اچولی محبت د دوی په زړونو کې مګر الله تعالی واچوو محبت په مينځ د دوی کې، يقيناً چې (الله) ښه غالب او ښه حکمت واله دی.

**دوهمه قاعده:**

په خپل مينځ کې به د ماشومانو په څير تعلق ساتئ نه د سړيو په څير.

ځکه سړی د خپلې مرتبې په خيال کې وي او ښځه د خپل ناز چې په دې سره عناد او بلاخره د اختلاف سبب ګرځي.

ماشومان داسې وي چې کله يې تر مينځ څه اختلاف پيدا شي په بېړه يو له بله جوړ شي او بېرته په خپلو لوبو پيل کوي پخپل مينځ کې هيڅ عناد او کينه نه ساتي.

**دريمه قاعده:**

د مشکلاتو په وخت کې يو د بل ډير زيات خيال ساتل:

که خاوند يا د هغه ښځه په څه سخت مصيبت اخته وي يا ناروغه وي د مصيبت او مرض پر مهال د هغه ډير خيال کول په کار دي، مقابل جانب به هغه ته د صبر، د زړه سکون او تسل ورکوي او د هغه په مصيبت او ناروغۍ باندې به خپل سخت خفګان څرګندوي.

[١]- سوره الأنفال: ٦٣.

او جانب مقابل به په غیاب کې هغه ته د مشکل د حل دعا کوي او الله پاک دغه دعا قبلوي ، ځکه چې د مسلمان دعا د بل غایب مسلمان په حق کې قبلیږي .

**څلورمه قاعده:**

په ژوند کې مشکلات شته او داسې خیال کول چې په ژوند کې به هیڅ اختلاف او مشکلات نه وي بې ځایه خیال دی.

خو پام چې د دنیا هر مشکل د حل لارې لري او هر مشکل تېردونکی دی.

کچېرې کله د خاوند او ښځې تر مینځ څه اختلاف را مینځه ته شي مثلاً ښځې ته په څه باندې قهر او غصه ورغلي وي او ښځه د خپلې غصې اظهار په بې کاره خبرو کوي نو خاوند باید سکوت اختیار کړي، همدارنګه که خاوند ته په څه باندې غصه ورغلي وي ناراضه شوی وي او د خپلې عصې اظهار کوي نو ښځه به سکوت کوي او ځواب به نه ورکوي چې په دې سره به د مقابل جانب قهر او غصه له مینځه لاړه شي او اختلاف او مشکل به حل شي.

خو که یو بل ته مو په ځواب ورکولو پیل وکړ مشکل او اختلاف به نور هم پراخه شي دا چې هر مشکل تیردونکی دی خو ستاسې ژوند به تر څه وخته باقي وي نو ولې د څو دقیقو په مشکل خپل ژوند تنګوئ؟

**پنځمه قاعده:**

خپل منځي اختلافات او مشکلات پټ ساتئ حتی خپلو ډیرو نږدې خپلوانو ته یې هم مه بیانوئ ځکه مشکلات تېردونکي دي خو د ژوند د رازونو په افشاء کولو به تل پښیمانه وئ.

او بل دا چې ددې اختلافاتو بیانول د کورنیو تر مینځ د اختلاف سبب ګرځي ځکه که ښځه پخپل پلارګنۍ کې د خپل خاوند شکایت کوي د خاوند سره یې د پلارګنۍ عناد پیدا کیږي او که خاوند په پلارګنۍ کې د خپلې ښځې نه شکایت کوي نو د پلارګنۍ د هغه له ښځې سره عناد پیدا کیږي چې په دې سره د کورنیو تر مینځ اختلافات پیدا کیږي.

**شپږمه قاعده:**

**په ادب کې ژوند تېرول يو د بل درناوی او احترام ساتل**

کله چې د خاوند او ښځې په ژوند کې ادب او متقابل درناوی نه وي نو د ادب او احترام ځای به ټوکې، مسخرې، بې ادبه خبرې او نور عبثيات او چټييات نيسي چې په دې سره به محبت له مينځه لاړ شي يو له بله به کرکه مينځته راشي.

عربي ليکواله فاطمه بنت عبدالله.

# آتم فصل

## په مسلمانو خويندو باندې اسلامي دعوت فرض دى

ځينې مسلمانې خويندې دا فکر کوي چې د امر بالمعروف او نهي عن المنکر دنده او مسئوليت يوازې د نارينه دى، خو داسې بالکل نه ده بلکې دا مسئوليت د امت هر کس ته د خپل وس او مسئوليت موافق که نارينه وي يا ښځينه متوجه دى، فقط دومره خبره ده چې په دې کار کې د ښځې په نسبت سره د نارينه د مسئوليت دائره پراخه ده، لکن مسلمانه بې بې د ښځو په مجالسو او محافلو کې، د خپلوانو، کورنۍ او اولادونو پر وړاندې پوره مسئوليت لري .

په دليل د دغه حديث شريف : «كُلُّكُمْ رَاعٍ وَكُلُّكُمْ مَسْئُولٌ» {(هر يو د تاسې راعى (شپون ) دى او هر يو د تاسې د خپل رعيت (لاس لاندې کسانو ) په برخه کې مسئول دى} .

دا حکم د اسلامي امت ټولو کسانو ته که نارينه دي او که ښځې علماء دي او که عوام متوجه دى .

همدارنګه جناب رسول الله صلی الله عليه وسلم فرمايي :«وَالْمَرْأَةُ رَاعِيَةٌ فِي بَيْتِ زَوْجِهَا وَمَسْئُولَةٌ عَنْ رَعِيَّتِهَا...»[1] .

يعنې : ښځه د خاوند په کور کې شپونکې ده هغه د خپل لاس لاندې کسان په باره کې مسئوله ده .

امر بالمعروف او نهی عن المنکر ( په ښو کارونو باندې امر کول او له بدو کارونو څخه منع کول ) د صالحو نارينه او ښځينه مؤمنانو ستره دنده او مسئوليت دى،الله سبحانه وتعالى فرمايي:[وَالْمُؤْمِنُونَ وَالْمُؤْمِنَاتُ بَعْضُهُمْ أَوْلِيَاء بَعْضٍ يَأْمُرُونَ بِالْمَعْرُوفِ وَيَنْهَوْنَ عَنِ الْمُنكَرِ وَيُقِيمُونَ الصَّلاَةَ وَيُؤْتُونَ الزَّكَاةَ وَيُطِيعُونَ اللّهَ وَرَسُولَهُ أُوْلَئِكَ سَيَرْحَمُهُمُ اللّهُ إِنَّ اللّهَ عَزِيزٌ حَكِيمٌ][2] .

ژباړه : {او مؤمنان سړي او مؤمنانې ښځې ځينې د ځينو نورو دوستان دي امر کوي په نيکۍ او له بدليو نه خلک منع کوي لمونځ ودروي زکات ورکوي او د الله او د هغه د رسول الله اطاعت کوي پر همدغو خلکو به الله ډير ژر مهرباني وکړي ، بېشکه الله ډير غالب، ښه حکمت والا دى}.

[1] - رواه البخاري :۸۵۳ .
[2] - سوره التوبه :۷۱ .

امر بالمعروف او نهی عن المنکر د مؤمنانو له مهمو صفاتو څخه ستر صفت بلل کیږي چې د همدې صفت په وجه له منافقانو څخه جلا کیږي .

او فرمايي :[الْمُنَافِقُونَ وَالْمُنَافِقَاتُ بَعْضُهُم مِّن بَعْضٍ يَأْمُرُونَ بِالْمُنكَرِ وَيَنْهَوْنَ عَنِ الْمَعْرُوفِ وَيَقْبِضُونَ أَيْدِيَهُمْ نَسُواْ اللّهَ فَنَسِيَهُمْ إِنَّ الْمُنَافِقِينَ هُمُ الْفَاسِقُونَ][1] .

ژباړه :{منافقان سړي او منافقانې ښځې ځینې له ځینو نورو نه دي هغوی د بدۍ په لور بلنه او له نیکۍ نه منع کوي، خپل لاسونه له نېکیو نه تړي الله يې هېر کړ نو الله هم هغوی هېر کړل په رښتیا چې همدا منافقان فاسقان دي} .

**مسلمانې خورې !**

**د اسلام قدردانې مورې !**

ته هم سر له نن څخه دغه ستر مسئولیت ته چې د پیغمبرانو علیهم السلام دنده ده متوجه شه، که الله تعالی د ستا په لاس باندې یوازې یوې ښځې ته او خپل اولاد ته دې هدایت وکړي هغه د ستا د پاره تر هر څه غوره دي .

جناب رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمايي : لأَنْ يَهْدِيَ اللَّهُ عَزَّ وَجَلَّ عَلَى يَدَيْكَ رَجُلا خَيْرٌ لَكَ مِمَّا طَلَعَتْ عَلَيْهِ الشَّمْسُ وَغَرَبَتْ.[2] .

ژباړه : که الله ستا د لاس څخه یو بنده ته هدایت وکړي ستا دپاره د ټولو کائیناتو نه چې پرې لمر راخیږي او پرېوزی غوره دی .

له ابی هریرة نه روایت دی چې رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمايي :«مَن دَعا إلى هُدًى، كانَ لهُ مِنَ الأجر مِثلُ أُجورِ مَن تَبِعهُ، لا ينقُصُ ذلك مِن أجُورِهم شيئا»[3] .

ژباړه: کوم بنده چې د نیکۍ طرف ته خلقو ته دعوت ورکړو نو ده لره به د هغو ټولو خلقو هومره اجر او ثواب وي څوک چه د ده د دعوت سره يې نیک عمل شروع کړی وي .او ددې نیک عمل کونکو له عمله به هیڅ نه کمیږي .

[1] - سوره التوبه : ۶۷ .
[2] - الطبراني :۹۲۵ .
[3] - رواه مسلم :۲۶۷۴ .

**مسلمانې خورې !**

د پورته شرعي نصوصو څخه څرګندده شوه چې دعوت الى الله د نارینه او ښځې مسئولیت دی په خاصه توګه د اولاد اسلامي او اخلاقي تربیه او په خاص توګه کله چې د ښځې خاوند غایب وي .

که ښځه غواړي خلکو ته دین ورسوي نو هغه دې یو داعي زوی وروزي .

نن زمونږ د ټولنې د فساد یو وجه همدا ده چې د خپلو اولادو اسلامي تربیې او روزنې ته مو پام نه دی شوی، کچیرې د کور اهل اصلاح شي کوچه، کلی او بلاخره ټولنه به خامخا اصلاح وي .

مسلمانې خورې! نن څو ورځې له خپل اولاد سره تکلیف او زحمت تیر کړه، هغوی له بدو کارونو څخه په کلکه منع او ښو کارونو ته یې تشویق کړه، جومات ته یې د قرآن او د دین د زده کړې د پاره ولیږه، اسلامي تربیه ور وښیه، د اطاعاتو په حصه کې یې کلک وڅاره، کوچه کشتۍ ، د فاسدو خلکو له ملګرۍ، د فلمونو، سریالونو څخه یې وژغره، د څو ورځو د تکلیف په وجه به ټول عمر آرامه سرلوړې او په دنیا او آخرت کې ور باندې خوشحاله او افتخار کوونکې وې .

او که نن ورځ دې غفلت او سستي وکړه چې زما د سر څخه چپ وي، زه آرام ومه، ولو که په کوڅو کې ګرځي، ولو که ګیم او قمار وکړي ولو که سریال او فلم ته کیني ولو که جومات ته نه ځي ولو که د دین څخه بالکل ناخبره وي خو چې زما د سر نه چپ وي او زه آرامه وم او ماته شور او غالمغال ونه کړي، نو پوه شه چې دا د څو ورځو غفلت او سستي به ستا لپاره د ټول عمر غم وګرځي .

یو دا چې د الله تعالى پر وړاندې به مسئوله وې او بل دا چې د اولاد څخه به دې داسې لنډغر جوړ شي چې والدین او کور خو څه کوې چې د ټولې کوڅې، ټول کلي او ولس د پاره به غم او تکلیف وي .

**قدرمنې او غزتمندې مورې !**

مور په انسانو کې د تخم حیثیت لري که تخم سالم وي نباتات به هم سالم وي او که تخم خراب شو نباتات او د هغه حاصلات به ټول خراب شي، د ټولنې ټول کسان په لومړۍ مرحله

کې د مور د زانګو له مدرسې څخه فارغ شوي دي، که دا مدرسه سالمه شوه ټولنه به خامخا سالمه وي .

**د دعوتګرې ښځې صفات :**

۱ -**علم :** په علم کې دا شرط نه دی چې هغه به یوه مجتهده وي یا به د علم بحر وي بلکې مطلب دا دی چې کوم شي ته دعوت کوې په هغه باندې باید خپله علم ولري مثلاً : ښځو ته په لمانځه کې په خشوع کولو، لمونځ په لومړي وخت کې ادا کولو، د اسلامي حجاب باندې ترغیب ورکولو او د تبرج (بې پردګۍ)څخه منع کولو ته چې کله دعوت کوي نو باید داعیه ورباندې پوه وي.

۲ -**اخلاص :** نیت به یې یوازې او یوازې د الله تعالی رضا وي، کله چې اخلاص منځته راشي نو موانع به د الله تعالی په اذن لرې کیږي، دعوت عبادت دی او د عبادت د قبول لپاره اخلاص شرط دی.

۳ -**اعمال صالحه :** داعیه ښځه باید په هغو اعمالو کې زیاتوالی راولي کوم چې د الله تعالی د تقرب او نږدېوالی سبب ګرځي.

۴ -**قدوه حسنه (نیکه نمونه ) :** داعیه ښځه لومړی باید په هغه څه چې نورو ته یې دعوت ورکوي خپله عمل وکړي او بیا نورو ته په هغه باندې حکم وکړي، ځکه خلک د هغه عمل او قول ته ګوري، کچېرې ستا قول د عمل خلاف وي نو د احترام پر ځای در پورې خاندې.

۵ -**صبر :** په دعوت کې مشقت او تکلیف شته، خپله د هغه په کیفیت کې، د نورو لخوا ضرر، او یا د هغوی نه منل او بل دا چې د هغه ثمرې کې بیړه نه کول، نو ځکه امکان نلري چې د هغه د ثمرې لپاره صبر ونشي او خپله سینه د اوریدو پر وړاندې پراخه نشي.

۶ -**حکمت :** دعوت به په حکمت سره وي کوم چې لاندې اسلوب او طریقې پکې وي:

الف : د مناسب اسلوب انتخاب : ترغیب او ترهیب، قصص ، لنډې لنډې خبرې.

ب : د مناسب ځای انتخاب : په مجلس کې او یا په درسي حلقه کې او یا کور کې کوم ځای چې مناسب وي.

ج : په مناسب وخت کې : په داسې وخت کې چې ښځې په ضروري کار اخته نه وي بلکي د اوريدو او توجه لپاره مناسب وخت موجود وي.

د : تدريج او بيړه نه کول : لنډ لنډ مطالب او لنډې خبرې تر څو د هغوی زړه تنګ نشي او په شوق او رغبت سره يې واروي.

**٧ -حسن خلق (ښه اخلاق ):**

ښه اخلاق افضل عمل او هغه لره عجيب فوائد دي، د خلکو د زړونو لاس ته راوړلو داسې ذريعه ده چې په بل هيڅ شي لاس ته نه راوړل کيږي، حسن خلق لکه : صدق ، حياء ، تواضع ، نرمي او مهرباني، د بل سره د مخکې کيدو پر مهال تبسم او د څهرې پراخوالی، نور کسان په نيکو نمونو او لقبونو بلل، د غرور او تکبر څخه ځان ساتل، د بې ځايه غصې څخه پرهيز کول او نور.

٨ -**په بيروني مظهر باندې اهتمام :** داعيه ښځې ته ښايي چې د هغه بدن او جامه پاک وي ، ويښتان يې په مسنونه طريقه ږمنځ کړي او منظم وي، غاښونه يې پاک وي تر څو د هغې د خولې بوی ونه لګيږي، حجاب او جامه يې د اسلامي آدابو موافق وي.

**داعيه ښځه به نورو خويندو ته په لاندې نصائحو تينګار کوي :**

**لومړی نصيحت:**

مسلمانې خورې په دې باندې رضا او خوښه اوسه چې الله تعالی مو رب، اسلام مو دين او پيغمبر مو محمد صلی الله عليه وسلم دی، او بايد پخپل ځان کې د ايمان نښې او اثار قولاً، عملاً او اعتقاداً ښکاره کړې ځکه د ايمان سره نيک عمل شرط او نجات دی تر څو د الله سبحانه وتعالی د غضب او عذاب څخه نجات ومومې.

**دوهم نصيحت:**

مسلمانې خورې ! په پنځه وخته لمانځه باندې هميشوالی کوه، پام کوه چې د ژوند مشغولتيا مو د لمانځه څخه غافله نه کړې، ځکه د انسان د پيدايښت اصلي هدف عبادت دی، عبادت د کار تابع مه ګرځوه داسې چې کار خلاص شي بيا به لمونځ وکړمه، بلکي کار د لمانځه او عبادت تابع

وکړځوئ، تر څو مو دا لمونځ د ناروا کارونو څخه وژغوري، د نجات او خلاصون سبب مو شي او د دنيا په کارونو کې مو برکت او آسانتيا نازله شي.

الله سبحانه وتعالی فرمايي :[فإن الصلاة تنهى عن الفحشاء والمنكر][1]

ژباړه : يقيناً چې لمونځ منع کوي (لمونځ کوونکی ) له بې حيايي او بدو کارونو څخه . د لمونځ په تأخير او ناوخته کولو سره به دوه تاوانونه وکړئ عبادت به مو صحي ادا نشي او د ځان د پاره به کارونه سخت کړئ ځکه په قدسي حديث کې راغلی دي:

«يقول الله تعالي: يا بنيآدم! تفرغ لعبادتي أملأ صدرك غني وأسد فقرك وإن لم تفعل ملأت صدرك شغلا ولم أسد فقرك:(مسند احمد او ابن ماجه ) .

ژباړه:الله تعالی فرمايي : (ای د آدم زويه ! ځان دې زما د عبادت د پاره فارغ کړه تر څو ستا سينه له بې احتاجی، بې وسی او توان څخه ډکه کړم او فقر محتاجي له تا څخه لرې کړم کچيرې داسې ونه کړې ، ستا سينه به په مشغوليتونو ډکه کړم او تا نه به فقر او احتياج لرې نه کړم) .

د لمانځه د ضايع کوونکي د پاره نجات نشته :

رسول الله صلی الله عليه وسلم فرمايي :«مَنْ حافَظَ عَلَيْهَا، كَانَتْ لَهُ نُوراً وبُرْهَاناً وَنَجَاةً يَوْمَ القيامَةِ، وَمَنْ لَمْ يُحَافِظْ عَلَيْهَا، لَمْ يَكُنْ لَهُ بُرْهَانٌ وَلا نُورٌ وَلَا نَجَاةٌ، وَكَانَ يَوْمَ القِيَامَةِ مَعَ قارُونَ، وَهامَانَ، وَفِرْعَوْنَ، وَأُبَيِّ بْنِ خَلَفٍ»[2]

ژباړه: څوک چه په لمانځه (سره له حقوق) دايمی پابند وي هغه لمونځ به د قيامت په ورځ د ده لپاره دليل ،وسيله او رڼايي وګرځي، اوڅوک چه د لمانځه پابندي ونه کړي د ده لپاره به په قيامت کې نه دليل وي، نه وسيله،نه نجات او نه به نور وي ،او د قيامت په ورځ به له قارون،فرعون،هامان او ابی بن خلف سره يو ځای حشر کيږي.

**دريم نصيحت :**

مسلمانې خورې! کله چې له کور څخه وځې نو په پرده او حجاب کې ووځه، حجاب ستا د پاره ستر، عزت، وقار، امنيت او د پاکدامنۍ ډير کلک ديوال دی چې د الله تعالی د جانبه دربانديې

---

[1] - سوره العنكبوت :۴۵ .

[2] - رواه أحمد (۱۹۶/۲) ،والدارمي (۲۷۲۱) ،وابن حبان -۱۴۶۷.

فرض دی ، لقوله سبحانه وتعالی :[يَا أَيُّهَا النَّبِيُّ قُل لأَزْوَاجِكَ وَبَنَاتِكَ وَنِسَاء الْمُؤْمِنِينَ يُدْنِينَ عَلَيْهِنَّ مِن جَلاَبِيبِهِنَّ ذَلِكَ أَدْنَى أَن يُعْرَفْنَ فَلاَ يُؤْذَيْنَ وَكَانَ اللَّهُ غَفُورًا رَّحِيمًا][1] .

ژباړه : ای پیغمبره ! ووایه ته خپلو ښځو، لوبو، او د مؤمنانو ښځو ته چې خپل پړونې یا لوی څادرونه پر ځانو خواره کړي دا ډیره غوره کړنلاره ده تر څو و پیژندل شي نو نه به ربړول کیږي (د بدکاره او فاسقو خلکو له ضرر او اذلت رسولو په امن وي) او الله ښه بخښونکی مهربان دی.

**څلورم نصیحت:**

مسلمانې خورې ! د خاوند اطاعت کوه، د هغه سره ښه سلوک کوه، هغه ته په خیر نصیحت کوه، او هغه ته د غمونو او پریشانیو په وخت کې تسل ورکوه ځکه خاوند ستا د ژوند مهربانه ملګری، تکیه او د زړه سکون او تسل دی، د هغه سره آواز مه اچتوه او خبرې یې مه ردوه، جناب رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایي :إذا صلت المرأة خمسها، و صامت شهرها، و حفظت فرجها، و أطاعت زوجها، قيل لها ادخلي الجنة من أي أبوابها شئت) ( سلسلة صحيحية ) .

یعنې : کله چې ښځه پنځه وخته لمونځ وکړي، د رمضان روژه ونیسي د شرمګاه ساتنه وکړي او د میړه اطاعت وکړي هغې ته ویل کیږي له هرې دروازې دې خوښه وي جنت ته داخله شه .

**پنځم نصیحت:**

مسلمانې خورې ! خپل اولاد دې په صحي اسلامي تربیه وروزه، او د هغوی په زړونو کې د الله تعالی او رسول الله صلی الله علیه وسلم مینه او محبت وکره، هغوی له بدو کارونو او بدو اخلاق منع کړه تر څو د دوزخ د اور څخه نجات ومومي او دا کار خپل مسئولیت وګڼه :يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا قُوا أَنْفُسَكُمْ وَأَهْلِيكُمْ نَاراً (ای مؤمنانو خپل ځانونه او خپل اهل عیال مو د دوزخ له اوره وساتئ ) .

---

[1] - سوره الاحزاب :٥٩ .

**شپږم نصیحت:**

مسلمانې خورې ! د بیګانه خلکو د اختلاط او د هغوی سره بغیر له محرمه د سفر کولو څخه ځان وساته.

جناب رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایي : «من کان یؤمن بالله والیوم الآخر فلا یخلون بامرأة لیس معها ذو محرم منها ، فإن ثالثهما الشیطان »[1] ژباړه:څوک چې پر الله او ورځ د آخرت ایمان لري هغه دې د ښځې سره چې محرم یې نه وي ورسره کېنون نه کوي ځکه چې دریم یې شیطان دی .

**اوم نصیحت:**

مسلمانې خورې ! د نارینه سره په خبرو، لباس وغیره کې مشابهت مه کوه، رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایلي دي : «لعن الله المتشبهین من الرجال بالنساء والمتشبهات من النساء بالرجال»

ژباړه:د الله لعنت دی په هغو ښځو چې د نارینه په شان ځان جوړوي او په هغو سړیو چې د ښځو په شان ځان جوړوي.

او همدارنګه مسلمانه خور به د کفارو د ښځو په شان ځان نه جوړې د هغوی تقلید او رسم به نه کوي، نن ډېر د دین څخه ناخبره ښځې په دغه مرض باندې اخته دي د هندي سریالونو څخه چې د شیطاني ورکشاپونو له خوا خپرېږي تقلید کوي  داسې کول حرام دي، رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایلي دي : «من تشبه بقوم فهو منهم» ( څوک چې د کوم قوم سره مشابهت کوي له هغوی څخه به وشمیرل شي ) .

**آتم نصیحت :**

مسلمانه ښځه به د اسلامي امت دعوتګره مور وې، هغه به په حکمت سره د خپلو ګاونډیانو ښځو، خپلوانو ښځو ته د هغوی کره د ورتګ او د هغوی د راتګ او د هغوی سره د مجالسو په وخت کې هغوی ته د دین دعوت کوي او خپلو اولادونو ته به د دین دعوت کوي.

[1] - رواه أحمد وصححه الحاكم ووافقه الذهبي ، وصححه الألباني في غاية المرام (١٨٠ ).

**نهم نصیحت:**

مسلمانې خورې ! خپل زړه دې له شهاتو او شهواتو وساته، خپلې سترګې، ژبه او غوږونه دې له حرامو وساته، پوه شه چې داسې کول لويه تقواى ده او د الله (جل جلا له) په حق کې لويه حيا ده.

لقوله تعالى : [وَقُل لِّلْمُؤْمِنَاتِ يَغْضُضْنَ مِنْ أَبْصَارِهِنَّ وَيَحْفَظْنَ فُرُوجَهُنَّ][1]

ژباړه : او مؤمنانو ښځو ته ووايه چې خپلې سترګې ټيټې او خپل شرم ځايونه پټ وساتي .

رسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ : « إِنَّ اللَّهَ كَتَبَ عَلَى ابْنِ آدَمَ حَظَّهُ مِنْ الزِّنَا أَدْرَكَ ذَلِكَ لا مَحَالَةَ فَزِنَا الْعَيْنَيْنِ النَّظَرُ وَزِنَا اللِّسَانِ النُّطْقُ وَالنَّفْسُ تَمَنَّى وَتَشْتَهِي وَالْفَرْجُ يُصَدِّقُ ذَلِكَ أَوْ يُكَذِّبُهُ »[2] .

ژباړه :: الله تعالى د هر چا د پاره د زنا يو حصه تعين کړى ده ، پس د سترګو زنا نا محرم ته کتل دي ، د ژبه زنا خبرې کول دي او د نفس زنا د هغه هيله او آرزو کول او غوښتل دي ، دا شرمګا ده چې بيا د هغه يا تصديق کوي او يا تکذيب .

**لسم نصیحت :**

مسلمانې خورې ! خپل وخت دې له ضايع کيدو وژغوره، خپل وخت په ټوکو، نخرو او بې ګټې خبرو او قصو مه تېروه، د دنيا څو شميرلې امتحاني ورځې دي چې ډيرې ژر تيريږي، په دې څو ورځې ژوند کې مسلمان او مسلمانه بايد ټول وخت د تيارسۍ په حال کې وي او هرې خواته به پوره متوجه وي، بيا په پښيمانيا او افسوس هيڅ هم نه کيږي .

الله سبحانه وتعالى فرمايي : {يا حسرتنا على ما فرطنا فيها}[3] .

ژباړه: وايي به دوى : اى افسوس اي پښيمانۍ زمونږ په هغه شي چې مونږ تقصير کړى وو په دنيا کې .

اللهم اهد فتاة الإسلام لما تحبه وترضاه، و اعمر قلبها بالإيمان.

---

[1] - سوره النور :٣١ .
[2] - رواه البخاري :٦٢٤٣ ، و مسلم :٢٦٥٧ .
[3] - سوره الانعام : ٣١ .

# نهم فصل

## په مسلمانو خویندو کې خپاره شوي ناوړه کارونه

په اوس عصر کې چې په خویندو کې کوم ناوړه دودونه خپاره شوي دي نو د هغو څخه مو ځنې په پورتنیو احکامو کې بیان کړل او ځنې په لاندې توګه دي :

**اول- جادوګرو او ګوډګرو ته ورتلل:**

په ځنو نارینه وو کې هم دا ناوړه عادت شته خو دغه ناوړه کار په ځنو خویندو کې زیات او مخ پر زیاتیدو دی چې دوی جادو ګرو، د طالع او فال کتونکو ته ورځي.

د بخت یا قسمت او طالع معلوم کولو لپاره کاهن او ساحر ته ورتلل حرام دي او په اړه یې سخت وعید راغلی دی:

رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایي :« مَن أتَي عَرَّافاً فَسَألَهُ عَن شَئٍ فَصَدَّقَهُ لمَ تُقبَل لَهُ صَلاةٌ أربَعِينَ يَوماً»[١] .

ژباړه: {څوک چه عرافي ته (هغه کس چې په غیبو باندې د پوهېدلو دعوی لري) ورشي او د یوه شی په اړه له هغه څخه پوښتنه وکړی او هغه رښتیا وبولي د څلویښتو ورځو لمونځ یې نه قبلیږي }.

همدارنګه فرمایي :«مَن أتَي كاهِناً فَصَدَّقَهَ بمَا يَقُولُ فَقَد كفَر بمَا أنزَلَ عَلَي مُحَمَّدٍ صَلَّي الله عَلَيهِ وَ سَلَّم»[٢] .

ژباړه: {هر څوک چه فالګیر (هغه کس چه دعلم غیب دعوا کوي) ته ورشی او د هغه خبري رښتیا وګڼِ دا کس په هغه څه کافر شو کوم چي په محمد صلی الله علیه وسلم نازل شوي} .

ځکه چې الله پاک فرمایي: [قُل لاَّ أَمْلِكُ لِنَفْسِي نَفْعًا وَلاَ ضَرًّا إِلاَّ مَا شَاء اللّهُ ...][٣] .

ژباړه: ووایه (ای محمده ! دوی ته ) چه زه ځان ته د نفع او ضرر رسولو واک نه لرم مګر هغه څه چې الله تعالی یې اراده وفرمایي.

---

[١]- رواه مسلم .
[٢]- رواه مسند أحمد – (4 / 68) و سنن الترمذي (1 / 242) و سنن ابن الماجة (1 / 404).
[٣]- سوره الاعراف:١٨٨.

د سحر، نظر او پیریاني کس علایم تقریباً مشابح دي خو د سحر او جادو څو علائم په لاندې ډول دي:

۱ -کور ته د ننوتلو په وخت کې سخت په تنګتوب.

۲ -پرته له کوم سبب څخه ژړا او یا خندا.

۳ -د ذکر او عبادت څخه کرکه کول.

۴ -قولنج او د خېټي همیشنۍ درد.

۴ -بغیر له کوم سبب څخه د میړه یا د ښځې څخه شدیده کرکه کول.

۵ -د سحر له آیتونو څخه متأثیره کیدل.

**د ساحر او جادوګر علائم دا دي:**

۱ -ساحر او کاهن د ناروغ او د ناروغ د مور د نوم پوښتنه کوي.

۲ -د ناروغ څخه ځنی نښې نښاني غواړي لکه خولۍ ،رومنځ او داسې نور.

۳ -د یو حیوان په خاصو صفاتو ذبحه کول غواړي او د حیوان د ځنو برخو ګډول له وینی سره.

۴ -په بی مفهومه خبرو او نیمګړیو تورو به خبرې کوي.

۵ -یو شی به ناروغ ته ورکوي چه په ځمکه کې یې خښ یا یې د کور په کوم ځای کې پټ کړي.

۶ -د ځانګړیو وسایلو په وسیله د ناروغ له احوالو ځان خبرول.

۷ -د فسق علایم، په نومړي کس کې به د فسق علایم څرګند معلومیږی تقوی به له سره نلري یو فاسق انسان به وي.

**د سحر او کوډو علاج:**

د کوډو او سحر علاج په ساحر او کوډګر باندې حرام دی ځکه د رسول الله صلی الله علیه وسلم څخه چا پوښتنه وکړه چې د سحر علاج په سحر باندې جایز دی، رسول الله صلی الله علیه وسلم ور ته وفرمایل:«هُوَ مِنْ عَمَلِ الشَّيْطَانِ »[1] .

[1]- رواه أبو داود (3868).

ژباړه: دا د شیطان عمل دی ( داسې کول جایز نه دي).
بلکې د سحر علاج به په قرآنکریم او شرعي اذکارو سره کیږي.
علماء کرامو د قرانکریم لاندې آیتونه ښودلې دي چې هغه به په مریض باندې دم او یا په اوبو باندې دم کړ شي او هغه اوبه به مریض ته ورڅښل کیږي.

١ -د فاتحه د سورت لوستل.

٢ -آیة الکرسي.

٣ -د اعراف د سورت د ١٠۶- ١٢٢ آیت پورې

۴- د یونس د سورت ٧٩-٨٣ آیت پورې .

۵ -د طه د سورت له ۶۵-۶۹ آیت پورې.

۶ -سوره اخلاص او معوذتین درې ځله لوستل.

خپله مریض یې هم پر خپل ځان دم کولای شي، او که یو صالح عالم ته ورشي ډیر به ښه وي ، لکن ددې آیتونو په تلاوت کې اخلاص او یقین ضرور دی.
و الله سبحانه وتعالی اعلم

**دوهم- د ناشکري کول :**

په مسلمانو خویندو کې د کفران ناروغي!
په ډیرو مسلمانو خویندو کې د کفران یعنې ناشکرۍ ناروغي شتون لري، پخپل خاوند باندې ناشکري کوي، پخپل اولاد باندې ناشکري کوي او پخپل کور او خپل ژوند باندې ناشکري کوي.
تل خپل خاوند، خپل اولاد او خپل ژوند ورته سپک او بد ښکاري او د بل چا اولاد د بل چا کور او ژوند ورته ښه ښکاري.
د کفران او ناشکرۍ دنیوي عذاب او سزا دا ده چې تل به خفه او پریشانه وي خپل ځان به ورته تر ټولو سپک او ذلیل ښکاري.
ځکه د خاوند د ناشکرۍ په صورت کې به د هغه د احترام او قدر پر ځای د هغه سپکاوی کوي او د اولاد د قدر پر ځای به د هغوی سپکاوی کوي.

عربي مقوله ده :«احترم احترمک» (ته د بل احترام کوه څو هغه ستا احترام وکړي).

نو کله چې ته د خاوند د احترام او قدر پر ځای د هغه سپکاوی کوې نو بیا د ځان لپاره د څه تمه لرې ؟

د کوم تکلیف او مصیبت پرته د غم او پریشانۍ درې ستر اسباب دي:

۱- د خپل رب (جَل جلاله) نا فرماني کول.

۲ - پخپله برخه باندې قناعت نه کول.

۳ - د الله تعالی د نعمتونو ناشکري کول.

پخپل خاوند او خپل ژوند باندې د ناشکري کول د دنیوي سزا سربېره خطرناکې آخروي پایلې لري.

کچېرې د دغه ناوړه عمل څخه توبه ونه ایستل شي په آخرت کې یې سزا د دوزخ اور دی چې ډېر بد او سپک عذاب دی الله تعالی د مونږ ټول مسلمانان ترې وساتي.

جناب رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایلي: «أُرِيتُ النَّارَ فَإِذَا أَكْثَرُ أَهْلِهَا النِّسَاءُ يَكْفُرْنَ». قِيلَ: أَيَكْفُرْنَ بِاللَّهِ؟ قَالَ: «يَكْفُرْنَ الْعَشِيرَ، وَيَكْفُرْنَ الإِحْسَانَ، لَوْ أَحْسَنْتَ إِلَى إِحْدَاهُنَّ الدَّهْرَ ثُمَّ رَأَتْ مِنْكَ شَيْئًا، قَالَتْ: مَا رَأَيْتُ مِنْكَ خَيْرًا قَطُّ»[1] .

ژباړه: ماته د دوزخ اور وښودل شو ومې لیدل چې زیاته برخه د هغې ښځې وې، ځکه چې هغوی کفر اختیاروي، چا وویل، پر الله کفر اختیاروي ؟ ویې فرمایل: په خپل خاوند کفر اختیاروي ،په احسان کفر اختیاوي ،کچیرې یو له هغې سره یوه دنیا نیکی او ښیګڼې وکړې نو کچیرې یوه غلطۍ او بدی له تا څخه ویني نو وایې به چې هیڅکله مې له تا نه خیر ونه لیدلو.

مسلمانې خویندې دې د دغې خطرناکې ناروغۍ څخه خپل ځانونه وساتي.

کوښښ دې وکړې څو په ځان کې د قناعت او شکر کولو جذبه ژوندی کړي او د هغه د ژوندې کولو لپاره دې دعا وکړې.

و بالله توفیق

[1]- حدیث متفق علیه .

**دریم- د لمانځه ځنډول :**

د انسان د پیدایښت او په دنیا کې د انسان د ژوند اصلي مقصد د الله پاک عبادت دی ( د اسلامي شریعت موافق ژوند تیرول ).

د مؤمن بنده به اصلي هدف عبادت وي، نور دنیوي ژوند او د ژوند اسباب اصلاً د اصلي مقصد لپاره یو وسیله ده .

لمونځ د ټول دین ستن ده، او لمونځ د مؤمن د ټولو بدني عباداتو ترجماني کوي.

متأسفانه ډیر ورونه جومات نه ځي او په ډیرو خویندو کې عادت دی چې لمونځ ځنډوي او لمونځ پخپل وخت نه ادا کوي.

الله سبحانه وتعالی فرمایي : { فَوَيْلٌ لِلْمُصَلِّينَ * الَّذِينَ هُمْ عَنْ صَلاتِهِمْ سَاهُونَ ]

ژباړه : د ویل عذاب دی لمونځ کوونکو لره، هغه لمونځ کوونکي چې له خپل لمونځ څخه غافله دي.

ابن کثیر نقلوي چې : رسول الله صلی الله علیه وسلم د سعد بن ابی وقاص رضی الله عنه په ځواب کې چې له هغوی څخه یې و پوښتل چې د (هُمْ عَنْ صَلَاتِهِمْ سَاهُونَ) څخه مطلب کوم کسان دي ؟ و یې فرمایل : هغه کسان چې لمونځ له خپل وخت نه تأخیر او ځنډوي .

او جناب رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایي: دا د منافق لمونځ دی، دا د منافق لمونځ دی ، دا د منافق لمونځ دی چه سړی ناست وي د لمر انتظار کوي تر څو ښه زیړ شي او د شیطان د دوه ښکرو په مینځ کې راشي، نو پاڅي څلور تونکې ووهي او په دې کې الله ډیر کم یاد کړي .

او بله معنی دا ده چې د لمانځه له احکامو څخه خبرې نه وي، لمونځ سم نه ادا کوي، لکه: رکوع، قومه ، سجده، جلسه، قرائت او په ارکانو کې سکون او اطمنان .

او همدارنګه ځنې خویندې د کور کارونه په ولاړه تر سره کوي خو چې کله ستړې شي نو لمونځ په ناسته سره کوي حال چې فرض لمونځ د هغه چا لپاره چې د ولاړیدو توان لري په ناسته سره نه صحي کیږي مګر دا چې ناروغ وي او په ولاړه د لمانځه کولو توان و نه لري.

او همدارنګه ځنې خویندو د خپلو کارونو لپاره تقسیم اوقات او منظم پلان نلري د دوی زیات وخت په پخلنځی (آشپزخانه) کې په پخولو او نورو کارونو کې د ذکر او عبادت پرته ضایع کیږي

د عبادت لپاره وخت نه ځانګړی کوي... د زیاتو خویندو څخه مسنونه اذکار، د قرآنکریم تلاوت، او دیني مطالعه پاتې وي او یا هم وعظ او نصحیت او بیان ته چې د کارونو په څنګ کې هم کیدی شي له اوریدو غافله وي.

## څلورم- د مصیبت پر مهال چیغې او بې صبري کول :

او د هې ښځې په اړه سخت وعید راغلی دی چې د غم او مصیبت په وخت کې په زوره ژاړي، جامې او ویښتان شکوي[1].

نبي صلی الله علیه وسلم فرمایلي :«أَرْبَعٌ فِي أُمَّتِي مِنْ أَمْرِ الْجَاهِلِيَّةِ لَا يَتْرُكُونَهُنَّ : الْفَخْرُ بِالْأَحْسَابِ ، وَالطَّعْنُ فِي الْأَنْسَابِ ، وَالْاسْتِسْقَاءُ بِالنُّجُومِ ، وَالنِّيَاحَةُ عَلَى الْمَيِّتِ) . وَقَالَ : (النَّائِحَةُ إِذَا لَمْ تَتُبْ قَبْلَ مَوْتِهَا تُقَامُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ وَعَلَيْهَا سِرْبَالٌ مِنْ قَطِرَانٍ وَدِرْعٌ مِنْ جَرَبٍ»[2] .

ژباړه : {زما په امت کې څلور شیان د جاهلیت څخه دي چې دوی لا هم نه دي ترک کړي: په خپل نسب باندې فخر کول او نسب ته ښکنځل کول، له ستورو څخه غوښتنه او په مړي باندې په زوره ژړا کول او فرمایي: کچیرې نائحه د مرګ څخه مخکې توبه ونه باسي نو قیامت په ورځ به د قیرو او اور جامه ور وغوستل کیږي}.

همدارنګه د صحیحینو په کتاب کې راغلي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایي: « بَرِئَ مِنَ الصَّالِقَةِ والحَالِقَةِ والشَّاقَّةِ ».

یعنې: درې ډلې زما څخه جلا دي،یو هغه چې د مصبت په وخت کې خپل آواز اوچت کړي،دوهم هغه کس چې د مصیبت له وجې خپل سر وخریي او دریم هغه کس چې د مصیبت په وخت کې خپلې جامې څیرې کړي.

همدارنګه زیارتونو ته تنها یا ډلې ډلې بې حجابه تلل او هلته میلې جوړول، او نور بدعات او شرکیات تر سره کول، لکه: په قبرونو اورونه بلول، د تبرک لپاره د قبر خاورې خوړل، د قبر طواف، د قبرونو څخه د مشکل د حل غوښتل او نور .

[1] - د غم او په خاصه توګه په مړو باندې په زوره زوره ژړل، خپل مخ وهي ویښتان او جامې څیروي، جناب رسول الله صلی الله علیه وسلم په داسې ښځو لعنت فرمایلي دی:«لعن النائحة والمستمعة». (صحیح مسلم).
[2] - أخرجه مسلم في صحيحه .

په قبرونو باندې د ښځو جمع کيدل کچېرې د غم د تازه کولو ، ژړا او نورو منکراتو لپاره وي په اړه دا حديث راغلی «لعن الله زائِرات القبور» يعني: (الله تعالی لعنت کړی دی پر هغو ښځو چه د قبرونو زيارت وکړي) او که د پورته منکرات پرته وي باک نلري. [(١)]

**پنځم- د کوم عذر پرته د خلع غوښتل:**

او په هغه ښځه د الله تعالی لعنت دی چې د کوم عذر او سبب پرته له خپل خاوند څخه طلاق اخلي[(١)].

جناب رسول الله صلی الله عليه وسلم فرمايلي دي :« أَيُّمَا امْرَأَةٍ سَأَلَتْ زَوْجَهَا طَلاقًا فِي غَيْرِ مَا بَأْسٍ فَحَرَامٌ عَلَيْهَا رَائِحَةُ الْجَنَّة »

ژباړه : کومې ښځې چې د سخت تکليف يا څه خاص وجه پرته طلاق وغوښتلو په هغې د جنت بوی حرام دی.

او همدارنګه فرمايي : « إنَّ المُختَلِعاتِ هُنَّ المنافِقاتُ ».

ژباړه: کومې ښځې چې بغير د څه ضرورت نه خلع غواړي هغه په حقيقت منافقې دي.

**شپږم – ځنې نور بد عادتونه :**

- ✓ ځينې ښځې د کور په پاکۍ او نظافت کې کوتاهي کوي او د خپل خاوند د پاره زينت او ښايست نه کوي، حال دا چې کله له کور نه وځي د خپلوانو کره ځي نو بيا په سينګار او ښايست باندې ساعتونه تيروي.
- ✓ ډيرې ښځې د نارينه په جرمونو کې شريکې دي، ډير کسان خيال کوي چې په ټولنه کې جرمونه ټول نارينه تر سره کوي خو دې مو بايد پام وي چې په دغه جرمونو کې ښځې هم لاس او ونډه لري هغه دا چې پخپله برخه قناعت نه کوي، خاوند ته پيغورونه ورکوي چې د فلانی ښه کور، ښه ژوند، ښه معاش لري او ته څه بلاء وهلی يې بلاخره ضعيف الايمانه خاوند حرام خوری ته مجبور کړي، او په دغه ناشکری باندې ډيرو ښځو

---

[١]- رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمايلي:«أيما امرأة سألت زوجها الطلاق في غير ما بأس، فحرام عليها رائحة الجنّة» (صحيح رواه اصحاب السنن).
ژباړه: هره ښځه چه د کوم عذر او سبب نه پرته له خپل خاوند څخه طلاق وغواړي په هغې د جنت بوی حرام دی.

خپلو خاوندانو ته خپل کورونه دوزخ جوړ کړي دي او د هغوی ژوند یې ور تریخ کړی دی.

او همداسې خپل خاوند په قیمتي لباس اخیستلو او قمیتي سوغات اخیستلو باندې کړوي کوم چې لازم نه وي.

- ✓ د کور خبري، پټ رازونه له نورو سره شریکوي.
- ✓ لوړ مهر تعینول او په ودونو کې ډیر اسراف کول په حدیث شریف کې راغلي دي چې:
  قال النبي صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: (خير النكاح أيسره) رواه ابن حبان – صحيح الجامع

وقال صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: (خير الصداق أيسره) رواه الحاكم والبيهقي.

یعنی: غوره نکاح او غوره مهر هغه دی چې په هغه کې آساني وي.

او دا مسئولیت د هغې والدینو ته متوجه دی .

- ✓ غرور او کبر کول، ځینې ښځې چې د لوړ قیمت لباس اغوندې او زېورات اچوي نو بیا په نورو ښځو خپل ځان اوچپ ګڼې، رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایي: (لا يدخل الجنة من كان في قلبه مثقال ذرة من كبر) مسلم. یعنې: د چا په زړه کې چې د مثقال د زرې په اندازه کبر وي حنت ته به داخله نشي.
- ✓ نفلو او سنتو کې سستي کول، ځینې ښځې یوازې په رمضان کې د قرآنکریم تلاوت کوي او بس، نفلونه نه کوي او ځېنې یوازې فرض ادا کوي له سستی څخه سنت لمونځ نه ادا کوي.
- ✓ حال داچې د قیامت په ورځ کچیرې په فرض لمانځه کې کمی راشي الله تعالی یې پخپل فضل له نفلي لمونځونو څخه پوره کوي، او دا چې فرض هم ناقص وي او سنت او نفل هم نه وي نو بیا به یې په څه پوره کوې؟

- ✓ ځنې د عدت احکام په نظر کې نه نیسي، لکه: د خاوند د وفات عدت چې څلور میاشتې او لس ورځې دی په دغه موده کې به له ضرورت پرته د خاوند له کور څخه نه وځي او زینت او سینګار به نه کوي.

پای

مسلمانې خورې! د پورته ګناهونو څخه ځان وساته ځکه دغه ګناهونو د الله تعالی د لعنت ، او پر بله اصطلاح د رحمت او جنت څخه د محرومیدو او یا د رسول الله صلی الله علیه وسلم د شفاعت څخه د بې برخه کیدو سبب ګرځي .

که په کومه خور کې چې پورته کوم عادت موجود وي نو د هغه څخه باید توبه وباسي .

و بالله توفیق

## لسم فصل

## د مسلمانو خويندو پرورانديې د اسلام دوښمنو دسيسې

### لومړی مساوات (جنډر):

د طاغوتي ديموکراسۍ درې ستر بنسټونه دي :

۱- له سياست څخه د دين لري کول، يا له دين سره د طاغوت يا ساختګي قوانينو يو ځای کول.

۲- بې قيده او بې واکه آزادي .

۳- مساوات .

په ديموکراسۍ کې يو اصل او بنسټ دا دی چې کافر، مشرک، مسلمان، صادق، فاسق او فاجر ټول سره مساوي او برابر دي.

او دا اصل د اسلام، عقل او فطرت ټولو خلاف دی .

الله سبحانه وتعالی فرمايي: قُل لاَّ يَسْتَوِي الْخَبِيثُ وَالطَّيِّبُ ...(سوره المائده:۱۰۰).

ژباړه :ووايه نه برابريږي پاک او نا پاک .

او فرمايي:[أَفَمَن كَانَ مُؤْمِنًا كَمَن كَانَ فَاسِقًا لاَّ يَسْتَوُونَ] (سوره السجده :۱۸).

ژباړه: آيا هغه کس چې مؤمن وي داسې دی لکه هغه چې فاسق وي، نه دي برابر.

عقلاً او فطرتاً هيڅ رښتنی او صادق له يو خاين، فاسق او غله سره برابر نه دی.

او همدارنګه د ديموکرسۍ بل بنسټ دا دی چې نارينه او ښځينه په دندو، مسئوليتونو او ټولو چارو کې سره مساوي او برابر دي .

حال دا چې د نارينه او ښځينه په فطري جوړښت کې فرق دی او اسلام فطري جوړښت ته په کتلو سره د نارينه او ښځينه تر منځ د دندو او مسئوليتونو عادلانه ويش کړی دی.

لکه: ښځه په هره مياشت کې مياشتي عادت لري، د اولاد د زږيتون لپاره مرګوني ناروغي تيروي، دوه کاله خپل اولاد ته پی ورکوي چې په دغه مرحله کې آرام او استراحت ته ضرورت لري نو آيا ښځه له نارينه سره په دندو او مسئوليتونو کې سره برابر دي ؟

او آیا ددې دواړو برابري ظلم نه دی ؟ هم اولاد راوړه او بیرني کارونه کوه او نفقه پیدا کوه ....
او د ښځې د مساواتو څخه یې مطلب د نفقې پیدا کولو په بهانه د ښځې شړل دي له خپل کور څخه څو د نارینه سره یو ځای کار وکړي او د نارینه په شان ځانته نفقه پیدا کړي ....
حال دا چې په اسلام کې د نفقې پیدا کولو مسئولیت د نارینه دی.
د کافرانو او فاسقانو عدل او منطق همدا دی چې هم اولاد وزږوه، هم د هغه خدمت کوه او هم د باندې کار تر سره کوه او ددې ټولو په بدل کې به د ښځې حیثیث هغه څه وي کوم چې نن یې په غرب کې لري..
د نفقې پیدا کولو مسئولیت د نارینه ځکه دی چې هغه د بیرونیو کارونو وړتیا لري ... آیا ښځه کولای شي د نفقې پیدا کولو لپاره بهرنیو هیوادونو ته یوازې سفر وکړي او هلته د ډیر وخت لپاره کار او مزدوري وکړي لکه څنګه یې چې یو نارینه تر سره کوي آیا دا امکان لري ؟ او په دې اړه له نارینه سره ځان برابرولی شي .
مسلمانانو وروڼو او خویندو! دا په یاد ولرئ چې اسلام د عدل دین دی نه د مساواتو.
العدل : هو المساواة بين المتماثلات و التفريق بين المختلفات .
المساواة : هي تسوية بين الأشياء المتماثلة و الأشياء المختلفة .
عدل د یو شان شیانو تر منځ برابري او د مختلفو شیانو تر منځ تفریق او جلا والي ته وایي.
او مساوات د یو شان او همدارنګه مختلفو شیانو تر منځ برابری ته وایي .
نو اوس تاسې فکر وکړئ چې کوم یو کامل دی ... پس اسلام اللهي قانون دی چې د هره اړخه څخه کامل او عادل دی .
د شریعې مکلفیت پر وړاندې نارینه او ښځینه یو شان دي او دواړو لپاره یو شان اجر او بدله ده [[إِنَّ الْمُسْلِمِينَ وَالْمُسْلِمَاتِ وَالْمُؤْمِنِينَ وَالْمُؤْمِنَاتِ .... أَعَدَّ اللَّهُ لَهُم مَّغْفِرَةً وَأَجْرًا عَظِيمًا][1]
ژباړه: {یقیناً مسلمانان نارینه او مسلمانانې ښځې،مؤمنان نارینه او مؤمنانې ښځې... تیار کړی دی الله تعالی دوی (ټولو ته) مغفرت او لوی اجر (جنت)}.

---

[1]- سوره الاحزاب:۳۵.

غوروالی په تقوی کې دی، یوه تقوی داره ښځه تر ډیرو نارینه غوره او درجه یې لوړ وي او یو تقوی داره نارینه تر ډیرو ښځو غوره وي.

یوه مجله د فرانسوي ښځو فریاد او آواز نقلوي او لیکي:

موږ د نارینه ووسره د مساوي حقوقو د برابرې مسئلې زښته اندیښمنې کړي یو، د تردد او پریشانیو سره مخامخ یو او همدغو اندیښنو پر موږ خوب حرام کړی او په دې لټه کې یو چې په څه توګه کار او وظیفه پیدا کړو چې تر څو د ژوند په ډګر کې د نارینه سره یو ځای ژوند تر سره کړو، موږ د مساوات لټې له کورنۍ ژوند څخه دومره لیرې کړي یو چې نشو کولای په ویښه خپل میړونه ووینو موږ یوائې خپل ماشومان د ډوډۍ په دسترخوان لیدلای شو او بس، له دې مساوات څخه موږ ستړې یو، موږ نور له دې مساوات څخه نفرت لرو، موږ غواړو چې نور د کور ښځې شو او د خپلو اولادونو له پاره مهربانه میندې ووسیږو[1].

و ما توفیقي الا بالله علیه توکلت و الیه انیب

## په دیموکراسۍ کې د ښځو د آزادۍ مطلب ؟

د اسلامي نړۍ پر وړاندې د غربي کفري نړۍ د فکري جګړې درې ستر وسایل دي:

اول – سیکولریزم یا علمانیت (بي دیني)، د سیاست، تعلیم او مډیا د سکولر کولو کوښښ.

دوهم – قومیت (په مسلمانانو کې د قوم، سمت او ژبې پایلل او ددې په وسیله د هغوی ویشل ).

دریم – د ښځې آزادي .

الله تعالی انسان آزاد پیدا کړی دی ، اسلام د بنده ګانو له بنده ګۍ څخه انسانان د خپل خالق د بنده ګۍ لوري ته بولي، الله سبحانه وتعالی فرمایي: [يَا أَيُّهَا النَّاسُ اعْبُدُواْ رَبَّكُمُ الَّذِي خَلَقَكُمْ...][2].

ژباړه: ای خلقو! د خپل رب عبادت کوئ، هغه (رب) چې تاسو یې پیدا کړي یئ.

---

[1]- دا د ۲،۵ میلیون فرانسوي ښځو شکایت نامه ده چې د مصر د «الاخبار» جریدې خپره کړې ده .

[2]- سوره البقره:۲۱.

په قرآنکريم کې يو ځانګړی سورت د «النساء» په نوم دی چې دغه مهم بنسټ ته اشاره کوي چې سړي او ښځې له يو نفس څخه پيدا شوي دي، الله سبحانه وتعالی فرمايي: [يَا أَيُّهَا النَّاسُ اتَّقُواْ رَبَّكُمُ الَّذِي خَلَقَكُم مِّن نَّفْسٍ وَاحِدَةٍ وَخَلَقَ مِنْهَا زَوْجَهَا وَبَثَّ مِنْهُمَا رِجَالاً كَثِيرًا وَنِسَاء ...] [1].

ژباړه: ای خلقو! له خپل رب نه ووېرېږئ هغه چې تاسو يې د يو نفس نه پيدا کړي يئ او له هغه نه يې د هغه جوړه پيدا کړې ده، او له دغو دواړو نه يې (په ځمکه کې) ډېر سړي او ښځې خواره کړل.

د مصلحت او نظم ساتلو لپاره يې نارينه د کور مشر ګرځولی دی [الرِّجَالُ قَوَّامُونَ عَلَى النِّسَاء...]

ځکه کچيرې د کور لپاره دوه مشران وي لکه : په ديموکراسۍ کې نو کېدونکي را منځته کيږي ځکه کچيرې د بيړۍ دوه چلوونکي وي نو بيړۍ به عرقه کړي .

مسلمانه ښځه او نارينه فطرتاً آزاد دي، مسلمانه ښځه د کور ملکه او د خپل مال متصرفه ده .

نو د غربيانو او اسلام دوښمنو د ښځې له آزادۍ څخه مطلب څه دی ؟

د خپل ولي، سرپرست ، محرم او خاوند څخه آزادي چې هر چيرې ځي او هر څه کوي سرپرست او مشر يې د پوښتنې او اجازې حق نه لري .

او د ښځې د آزادۍ څخه يې مطلب د ښځې ازادول دي له حجاب او لباس څخه.

او د ښځې ازادول يې مطلب دي له خپل کور او اصلي دندې څخه تر څو له نارينه وو سره يې کېډې کړي او بې حيا او فاحش محيط او ټولنه را منځته کړي.

نو کله چې ښځه له خپل کور او خپل حجاب او پردې څخه آزاده شوه ټولنه له لويې بربادۍ سره مخ شوه، ځکه هغه کسان چې د مدارسو او پوهنتونو څخه فارغيږي امکان لري يو شمير وي او امکان لري داسې کسان هم وي چې د هيڅ مدرسې او پوهنتون څخه فارغ شوی نه وي خو د مور داسې مدرسه او پوهنتون دی چې د هغه څخه هر مسلمان او حتی هر انسان فارغيږي کچېرې دا مدرسه صالحه شوه نو فارغان به يې هم صالح وي او که فاسده شوه فارغان به يې

[1] - سوره النسآء:۱ .

هم فاسد وي او د کور څخه د ښځې د آزادولو او ایستلو معنی د دغه مدرسې او پوهنتون بربادول دي .

غربي دوکتور سولیفان (Dr:Soliphan) په دغه حقیقت باندې داسې اعتراف کوي :

په امریکایي ټولنه کې د کورني نظام د پاشلو او زیاتو جرمونو وجه دا ده چې ښځې خپل کور پرېښی نو کورنی نظام ضعیف شو او د اخلاقو سطحه ټیټه شوه .

تجربو دا په ثبوت رسولې ده چې د هلاکت څخه د نوي نسل د خلاصون لپاره یوازنی لاره دا ده چې ښځه خپل حریم ته بیرته ور وګرځي [1].

**د ښځو لپاره د کور څخه بهر دنده او کارکول څنګه دي ؟**

اصل دا دی چې د نفقې او کورني احتیاجاتو پوره کول د نارینه مسئولیت دی نه د ښځې، د ښځې نفقه د پلار په کور کې د هغې د پلار، یا نیکه، ورور او یا کاکا پر غاړه ده او د خاوند په کور کې د هغې نفقه د هغې په خاوند، خسر، زوی باندې واجب ده.

لقوله سبحانه وتعالی : [الرِّجَالُ قَوَّامُونَ عَلَى النِّسَاء بِمَا فَضَّلَ اللّهُ بَعْضَهُمْ عَلَى بَعْضٍ وَبِمَا أَنفَقُواْ مِنْ أَمْوَالِهِمْ][2] .

ژباړه: سړي پر ښځو حاکمان دي له دې کبله چې الله پاک ځینې د دوی ته پر ځینو نورو افضلیت او غوراوی ورکړی دی او له دې امله چې نارینه ( د ښځو لپاره ) خپله شتمني لګوي.

او فرمایي: [وَعلَى الْمَوْلُودِ لَهُ رِزْقُهُنَّ وَكِسْوَتُهُنَّ بِالْمَعْرُوفِ][3] .

ژباړه: په دې صورت کې به د ماشوم پلار په ښه توګه هغوی (مور او ماشوم ) ته په ښه توګه خواړه او جامې ورکوي.

او حضرت جابر رضی الله عنه روایت کوي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم د حجة الوداع په خطبه کې وفرمایلې:

«...ولهن علیکم رزقهن وکسوتهن بالمعروف ».[4] .

---

[1]- الاختلاط بين الجنسين ص ١٠۶ ، المرأة بين الفقة و القانون :ص :٢٥٣ .

[2]- سوره النسآء:٢۴.

[3]- سوره البقره :٢٣٣.

[4]- رواه مسلم :١٢١٨.

يعنې : او د هغوی (ښځو) پر تاسې باندې دا حق دی چې هغوی ته به په ښه شان نفقه او د استوګنې ځای برابروئ.

بل اصل دا دی چې ښځه به په کور کې اوسیږي د کور چارې به تر سره کوي او نارینه به د باندې چارې تر سره کوي، ښځه به د ضرورت پرته له کور څخه نه وځي ، لقوله سبحانه وتعالى :

[وقرن في بيوتكن ولا تبرجن تبرج الجاهلية الأولى][1] .

مګر کچېرې ښځه بې سرپرسته شي نو نفقه یې پر اقاربو واجب ده او کچیرې یې اقارب نه وي نو بیا به د اسلامي حکومت له بیت المال څخه هغې ته نفقه ورکول کیږي نو که دا هم نه وي نو د شرعي ضوابطو په رڼا کار کولی شي او یا داسې چارې وي چې نارینه یې نشي تر سره کولی او د ښځو په موجودیت کې یې هغوی ته کول رواه نه وي لکه : د ښځو درملنه په خاصه توګه نسایي او ولادي څانګه، د ښځو تدریس، د ښځو د جامو ګنډل او داسې نور.

**ښځې ته کارکول د لاندې شرعي ضوابطو په صورت کې جایز دی :**

١ -دا چې د نارینه سره به کډون او اختلاط نه وي، یعنې کار به په کامل ښځینه چاپیریال کې وي هغه که علمي څانګه وي، روغتون، دفتر او یا بل کار ځای وي ، په دلیل د دغه حدیث شریف: «إياكم والدخول على النساء »[2].

ژباړه: د بیګانه ښځو د خلوت نه ځان وساتئ.

٢ -دا چې د هغې د ولي او سرپرست په اجازې به وي ځکه نارینه پر ښځو باندې مشران ټاکل شوي دي، لقوله سبحانه وتعالى: [ الرِّجَالُ قَوَّامُونَ عَلَى النِّسَاءِ].

٣ -دا چې دا کار به د والدینو او یا خاوند د حقوقو او همدارنګه د اولاد د روزنې او پالنې په لاره کې خنډ نه وي بلکي د هغوی د حقونو پر ځای کول به مقدم وي.

[1]- الأحزاب :٣٣.
[2]- حديث متفق عليه .

۴ -دا چې دغه کار به د هغې د طبعې جوښت سره مناسب وي لکه : د الله تعالی طرف ته دعوت ، درملنه، تعلیم او تدریس، خیاطي او نور، داسې سخت او وزمین کار به نه وي چې د هغې د توان څخه لوړ وي.

۵ -دا چې شرعي حجاب به مراعاتوي.

۶ -دا چې په هغه کې به سفر نه وي او که سفر وي د محرم څخه پرته به نه وي.

۷ -او دا کار به اصلاً حرام نه وي لکه : د آرایشګاه حرام سینګار، فلم، سریال او د موسیقي ځانګه کې کار کول.

**د یو سړي په نسبت د دوو ښځو ګواهي حق او که مسئولیت ؟**

ځنې غیر مسلم اعتراض کوي چې په ګواهۍ او شهادت ادا کولو کې دوې ښځې له یو نارینه سره مساوی شوي دي چې دلته د ښځې او سړي حقونه مساوی نه دي .

ځواب:

نوموړي په اشتباه کې دي ځکه د حقونو او مسئولیت تر مینځ یې فرق نه دی کړی.

شهادت او ګواهي ادا کول حق نه دی بلکې یو دروند مسئولیت او کار دی چې اسلامي شریعت د نارینه په نسبت د ښځې لپاره تخفیف پکې کړی دی، او دا ګواهي د معاملاتو په باره کې ده.

الله سبحانه وتعالی فرمايي :[وَاسْتَشْهِدُواْ شَهِيدَيْنِ من رِّجَالِكُمْ فَإِن لَّمْ يَكُونَا رَجُلَيْنِ فَرَجُلٌ وَامْرَأَتَانِ مِمَّن تَرْضَوْنَ مِنَ الشُّهَدَاء أَن تَضِلَّ إْحْدَاهُمَا فَتُذَكِّرَ إِحْدَاهُمَا الأُخْرَى][1] .

ژباړه : او تاسو له خپلو (مسلمانانو) سړیو نه دوه ګواهان ګواه ونیسئ-، نو که دوه سړي ګواهان نه وي، نو یو سړی او دوه ښځې (دې ګواه شي) له هغو ګواهانو څخه چې تاسو یې خوښَوئ، د دې لپاره چې که په دواړو کې له یوې نه هېر شي؛ نو په دوی کې یوه به یې بلې ته وریاد کړ.

په ګواهۍ کې د نارینه په نسبت د دوو ښځو ټاکلو حکمت:

[1]- سوره البقره :۲۸۲.

۱ -په ګواهۍ کې محکمې ته تلل او حاضرېدلو ته ضرورت وي چې د یوې ښځې پر ځای دوې ښځې مناسبې دي.

۲ -په معاملاتو او بیروني دروندو کارونو کې ښځې نابلده وي نو ځکه د هیرېدو امکان موجود وي که له یوې څخه هیره شي هغه بله یې وریاد کړي.

۳ -ګواهۍ او شهادت ادا کول یو داسې مسئولیت دی چې د دوښمنۍ پیښېدو امکان هم پکې شته نو په دې صورت کې د یوې ښځې پر ځای دوې ښځې مناسبې دي.

و ما توفیقي الا بالله علیه توکلت و الیه انیب

**ولې د ښځو د میراث برخه د نارینه په نسبت کمه ده :**

د میراث نظام یو حکیمانه نظام دی چې ستره اقصتادي دنده تر سره کوي مګر ځنې کسان د هغه د درک څخه عاجز دي او وایي ولې په ځنو صورتونو کې د ښځو په نسبت د نارینه برخه زیات وي ځکه چې ښځه مهر اخلی او هم د کور دمالي مصارفو مسئولیت نلري د میراث قضیه په مالی او د ژوند په مصارفو پوری اړه لري ښځه دکورنۍ د نفقې او مالي خرچ هیڅ مسولیت نلري او ټوله پانګه او مال پس انداز کولای شي .

مثلاً د ورور په نسبت د خور نیمه برخه ده، ورور به د واده لپاره مهر ادا کوي او د ښځې نفقه یې هم پر غاړه ده نو ځکه د هغه برخه زیاته ده .

د میراث ویش یو عجیب اقتصادي نظام دی کچېرې د والدینو پر ځای اولادونو ته مال ورکړل شي نو هغوی د والدینو په نسبت ډیر فعال دي ځکه چې والدین غالباً د پوخ سن خاوندان او ضعیف وي، او همدارنګه د ښځو په پرتله نارینه ته د مال په ورکولو سره اقتصادي فعالیت زیاتیږي او بل دا چې مالي لګښت د نارینه مسئولیت دی او میراث یوه مالي قضیه ده .

**د یوې ښځې نه علاوه نورو ښځو سره د نکاح کولو حکمت:**

د یوې ښځې څخه علاوه بلې ښځې سره واده کول یو استثنایي حالت دی چې په اسلامي نړۍ کې د دوهم واده فیصدي ډیره کمه ده په ځنو هیوادونو کې تر یو فیصد هم کم ده چې د ځنو حاجتونو له مخې دوهم واده ته ضرورت پېښېږي چې هغه حاجتونه او اسباب په لاندې ډول دي:

**۱ -د ښځې مرض:**

که چېرې ښځه ناروغه وي چې اولاد یې نه پیدا کیږي څرنګه چې د نکاح یو هدف نسل دی نو په دې وجه بل واده ته ضرورت پېښېږي څو د نسل سلسله جاري شي.

**۲ -د نارینه د شهوت زیاتوالی:**

ځنو سړیو ته الله تعالی زیات جنسي قدرت ورکړی وي، کچیرې د هغه شهوت پوره نشي نو د حرامو طرف ته د میلان سبب ګرځي.

**۳ -د ښځو د شمیر زیاتوالی:**

اسلام په دې اړه پخوا خبر ورکړی دی چې په آخر وخت کې به د ښځو شمیر زیات شي نظر سړیو ته او دا په ثبوت رسیدلې خبره ده.

دوکتور وهبة الزحیلي په فقه اسلامي و ادلته کې لیکي:

**ژباړه :** یقیناً چې د یوې ښځې لرلو نظام غوره دی او همدا د شریعت اصل دی مګر په ځنو استثنایي حالتونو کې د اصل خلاف دوهم واده ته حاجت پېښېږي چې د یوې څخه علاوه نورو ښځو سره واده کول په اسلامي شریعت کې نه واجب دی او نه یې هم په دې اړه ترغیب ورکړی بلکې د ځنو عامو او خاصو شرایطو په صورت مباح دی عام شرایط لکه:

د ښځو د زیادت او د سړیو د کمي معالجه کول هغه که په عادي حالاتو کې وي لکه په شمالي اورپا کې د ښځو د نسبت زیاتوالی او په جنګي شرایطو کې لکه په آلمان کې چې د لومړي نړیوال جنګ څخه وروسته د نارینه شمیر د ښځو په نسبت ډیر کم شو داسې چې تقریباً د یوې سړي په سر به څلور او یا شپږ ښځې رسیدلې بیا آلماني ښځو مظاهرې وکړې چې په واده کې د ښځو شمیر زیات کړ شي.

نو په همدې خاطر په ځنو حالاتو کې د ښځو تعدد یو اخلاقي او ټولنیز ضرورت دی او ددې ضرورت په وجه تعدد یو مصلحت او رحمت دی ځکه ښځې د انحرافاتو او خطرناکو امراضو لکه ایډز څخه ساتي او ښځه یوه سرپناه مومي چې په هغه کې په اطمنان او راحت سره ژوند کولای شي، د هغه جنسي بې لارېتوب او نا مشروع ملګریو مخه نیول کیږي چې په عامه لارو او محلونو کې یو بل ته د جنسي رغبت کولو اشارې کوي[1].

**۴ -د میړه او ښځې تر مینځ اختلاف:**

ځنې وخت د میړه او ښځې تر مینځ تعلقات خرابیږي خاوند د طلاق پر ځای دوهم واده ته ترجیح ورکوي ځکه الله تعالی ته په ټولو حلالو کې طلاق بد دی .

ځکه طلاق دایمي فراق دی کیدای شي د دوهم واده په وجه د ښځې اخلاق او سلوک سم شي او هغوی په دې لاره کې رقابت وکړي چې دا لاره واقعاً تر طلاق ورکولو څخه ښه لاره ده.

مګر په طاغوتي دیموکراسۍ کې دوهم واده جرم دی خو په نامشروع تعلقاتو، ملګرۍ او عشق بازۍ کې بیا څه حد نه دی ټاکل شوی، دوکتور علي جریشه پخپل کتاب «اسالیب الغزوه الفکري» وایي: یو ځل یو کس په الجزایر کې دوهم واده وکړ د وخت حکومت چې د دیموکراسۍ پر بنسټونو ولاړ وو په هغه یې د مجرم حکم وکړ... هغه د خپل دغه کار لپاره ډیرې منډې ووهلې آخر یې دوهم واده ښځه د ملګرې په نوم ثبت کړه او له دغه جرم څخه خلاص شو.

و ما توفیقي الا بالله علیه توکلت والیه انیب

حمدالله "شاکري" غفره الله و لوالدیه و جمیع المؤمنین

علم شرعي : الأکادیمیة الإسلامیة –ریاض

علم عصري : انجنیري پوهنتون کابل

[1] - إن نظام وحدة الزوجة هو الأفضل وهو الغالب وهو الأصل شرعاً، وأما تعدد الزوجات فهو أمر نادر استثنائي وخلاف الأصل، لا يلجأ إليه إلا عند الحاجة الملحة، ولم توجبه الشريعة على أحد، بل ولم ترغب فيه، وإنما أباحته الشريعة لأسباب عامة وخاصة.
أما الأسباب العامة: فمنها معالجة حالة قلة الرجال وكثرة النساء، سواء في الأحوال العادية بزيادة نسبة النساء، كشمال أوربا، أم في أعقاب الحروب، كما حد ث في ألمانيا بعد الحرب العالمية الأولى، إذ أصبحت نسبة النساء للرجال واحداً إلى أربعة أو إلى ستة، فقامت النساء الألمانيات بمظاهرات يطالبن بالأخذ بنظام تعدد الزوجات.
وحينئذ يصبح نظام التعدد ضرورة اجتماعية وأخلاقية، تقتضيها المصلحة والرحمة، وصيانة النساء عن التبذل والانحراف، والإصابة بالأمراض الخطيرة مثل مرض فقد المناعة ( الإيدز)، والإيواء في ظل بيت الزوجية الذي تجد فيه المرأة الراحة والطمأنينة،بدلاً من البحث عن الأصحاب الوقتيين، أو حمل لافتات في مواطن إشارات المرور يعلن فيها عن الرغبة في الاتصال الجنسي .